قَالَ اللّٰہُ تعَالیٰ: اِنَّ الَّذِیْنَ یُحِبُّوْنَ اَنْ تَشِیْعَ الْفَاحِشَۃُ فِی الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا لَھُمْ عَذَابٌ اَلِیْمٌ۝ القرآن

قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ: لَعَنَ اللّٰہُ الْمُصَوِّرِیْنَ. الحدیث

# د موبائل او انټرنېټ
# فِتنَہ
# او د تصویرونو، ویډیوګانو
# وَبَال


مؤلف

مولوي محمد رضاء رحماني غلنکوي





دار النشر والاشاعة

عمري علمي او فرهنګي ټولنه

| | |
|---|---|
| د کتاب نوم : | د موبایل او انټرنیټ فتنه، او دتصویرونو ویډیوګانو وبال |
| مؤلف : | مولوي محمد رضا رحماني غلنګوي |
| مصحح : | مولوي محمد نبي محمدي |
| کاتب : | منظوراحمد تائب؛ مکتبه اسلامیه محمدیه اکوړه خټک |
| ناشر : | عمري علمي او فرهنګي ټولنه |
| تعداد : | یولس سوه ۱۱۰۰ ټوکه |
| کال : | ۱۴۴۱ هجري ، ۲۰۱۹ عیسوي |

**د موندلو ادرس**

عمري علمي او فرهنګي ټولنه؛ دینه غیر په اسلامي ټولو کتبخانو کې موندلې شئ.

# اهداء الكتاب

اهدي كتابي هذا: إلى كل من عَمِل بِما فيها، و إلى احبَّتي طلبت العلم، إلى الباحثين عن الحقيقه، إلى من: الحكمت ضالتهم، الى من: الحق مبتغاهم، إلى المُتجردين والمُنصفين، و إلى كُلِّ مَن: له حَق و فضل علَيَّ؛ وصَلى الله تعالى علَى خير خَلقِه محمَّد و الِهِ وصَحُبه أجمعين .

فقير بنده

**مولوي محمد رضاء رحماني غلنګوي**

# فهرست

# د عذرليک

څرنګه چې دا يو واضح حقيقت دی چې په نن صبا وخت کې د موبايل او انټرنيټ فتنې او فساد د هر کور دروازه ورټکولې ده، خو الحمد لله تر ډيره حده ددې فتنې په اړه علماؤ بزرګانو خپل مسؤليت تقريرا او تحريرا د خپل ملت په وړاندې ادا کړی دی، په دې باب کې يې کتابونه او رسالې ليکلي دي،

او همدارنګه په عامو مسلمانانو باندې هم ددې وسائلو فتنه او فساد پټ نه دي، خو سره له دې بيا هم بعضې ناپوهه خلک ددې لپاره دلائل وايي، بناء ما عاجز بنده هم وغوښتل چې د جامعې د يو فرد په حيث خپل مسؤليت ادا کړم ؛ دغه يو څو کرښې مې ستاسو د خدمت لپاره ترتيب کړي دي، الله جَلَّجَلَالُهُ دې دا وړه رساله په خپل عظيم دربار کې قبوله او منظوره کړي، او الله جَلَّجَلَالُهُ دې يې اول زما لپاره او بيا د ټولو مسلمانانو لپاره دهدايت سبب وګرځوي. امين يارب العالمين.

وصلى الله تعالى علي خير خلقه محمد وآله وصحبه اجمعين

ستاسو د صالحو دعاګانو په هيله

مولوي محمد رضاء رحماني غلنګوي

۱۴۴۰/۵/۲۰ هجري ، ۲۰۱۹/۱/۲۷ عيسوي

# مقدمه

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رَبِّ العالمين رَبِّ السَّمٰوات والأرضِين والصَّلاة والسَّلام علي اشرف الأنبياء والمُرسلين سيِّدنا ومولانا محمَّد واله وصَحبه الغُرالميامِين و مَن تبعهم باحسان الي يوم الدين. أما بعد:

الله جَلَّجَلَالُهُ په قرآن عظيم الشان کې فرمايلي: ﴿وَلَاتُلۡقُوۡابِاَيۡدِيۡكُمۡ اِلَى التَّهۡلُكَةِ﴾. (۱)

**ترجمه:** تاسو په خپلو لاسونو ځانونه هلاکت ته مه اچوئ؛ اوس وخت کې په مسلمانانو کې د بې دينۍ فحاشۍ او عريانۍ خپرولو لپاره د کفارو لطرفه په داسې قسم نه سترې کيدونکي کوششونه روان دي چې شايد ددې به مخکې څه مثال نوي، په مسلمانانو کې فحاشي او د شريعت خلاف رسومات رائج کول ، ظاهري او باطني ګناهونه عام کول، د مسلمانانو عقائد او نظريات تخريب کول، او د اسلامي زدکړو څخه علاوه د دين څخه لرې کول، او بالآخره د کفر په تغر د کينولو کوششونه شروع دي.

۱: [البقره: ۱۹۵]

د فحاشۍ عريانۍ او بداخلاقۍ راوستلو لپاره چې کوم شيان د ذريعې په توګه استعماليږي دا په دوه قسمي دي.

[۱] سندرې، موسيقي، او ددې چې څومره نور مختلف اقسام دي.
[۲] تصويرونه، فلمونه، او ويډيوګانې.

بهر حال نن صبا وخت کې د کفارو ترټولو لويه او غټه اسلحه هم دغه ده چې فحاشي او عرياني عامه خپره کړي، او مسلمانان د الله جَلَّجَلَالُهُ د ذکر او د قيامت د ورځې د حساب او کتاب څخه غافل او بې فکره کړې، او ددې غفلت په ښکار سره د مسلمانانو په زړونو او د ماغو حمله وکړي دوی ددين او ايمان څخه خلاص کړي د ځان ملګري يې جوړ کړي.

په اوس وخت کې موبايل د هر چا ضرورت بلل کيږي، ددې په واسطه د خبرو او پيغامونو رسول يو سهولت او آساني رامينځ ته کړې ده، د ماشومانو څخه را واخله تر سپينګيرو پورې بيا د سړيو څخه تر ښځو پورې د هر عمر خلکو سره موبايل موجود دی.

که يو طرف ته دا د الله تعالی د مخلوق لپاره ډير ښه سهولت دی خو بل طرف ته دموبايل او انټرنيټ ساينسي پرمختګ زمونږ د ملتونو او جامعې لپاره د فتنې او فساد دروازه خلاصه کړه، او د مسلمانانو په جامعه کې يې د عريانۍ او بداخلاقۍ رول او کردار اداکړ.

دویډیو ګانو، فلمونو، بربنډ، نیم بربنډ عکسونو، او د هر قسمه فحاشۍ په خپرولو کې موبایل تر بل هر څه مخکې دی، که څه هم چې کفار د تلویزیون، ډش، سي ډي، وي سي آر، وغیره په واسطه فحاشي بې دیني او بداخلاقي ښه په لوړه پیمانه خپروي خو هر فرد فرد په هر حالت کې استفاده نه شي ځینې کولی.

د موبایل ایجاد ددې لپاره شوی دی چې هر فرد د جامعې په هر حالت کې استفاده ځینې وکړي، هغه که په موټر کې وي، یا په پښو روان وي، ناست وي او که ملاست وي، برق وي او که نوي، بهرتقدیر د یو مسلمان د دین او ایمان او اخلاقو خرابولو لپاره د موبایل غلط استعمال د زهرو څخه کم نه دی.

لکه څرنګه چې په اسلامي جامعه کې کومو افرادو کومې کورنۍ یا د کومې علاقې خلکو د موسیقۍ، فحاشۍ، عکسونو جوړولو، ویډیو ګانو او فلمونو جوړولو ته په زړونو، کورونو، خپلو علاقو کې ځائ ورکړی دی، هغه جامعه تباه او برباد شوی ده، هلته نه اخلاق پاتې دي، او نه امن شته، تش د نوم مسلماني ده، په شکل، لباس، خوراک څښاک، ودونو، کاروبارونو په هر څه کې یې د نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طریقې فراموش کړي دي، او د اغیارو لار او کردار یې خپل کړی دی، حتی په بعضو ځایونو کې د مسلمان پیژندل هم

مشکل دي، کفار په دې خبره هم راضي نه شول چې د مسلمانانو عقائد او نظريات مو خراب کړل، او د هغوی اخلاق مو برباد کړل، او د ژوند په هره نقطه او شعبه کې مو د ځان په تقليد مجبور کړل، بلکه يو قدم نور هم وړاندې تلل غواړي هغه دا چې د کفر په سيلاب مو لاهو کړي؛ لکه څرنګه چې الله جَلَّجَلَالُهُ په قران عظيم الشان کې فرمايي ﴿وَلَنْ تَرْضَىٰ عَنْكَ الْيَهُودُ وَلَا النَّصَارَىٰ حَتَّىٰ تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ﴾.

**ترجمه:** هيڅ کله به راضي نه شي ستا څخه يهود او نصارٰی تر څو چې ته تابع نه شي د دوی د دين.

غرض او مطلب دادی چې په مسلمانانو باندې د سياسي او نظامي کمزوريو او فشارونو سربيره د مسلمانانو په دين او ايمان باندې هم متعارض دي هغه دا چې د منکراتو خپرولو لپاره د فحاشۍ جمله آلات اسباب د اسلحې په توګه استعمالوي؛ الله جَلَّجَلَالُهُ دې د امت په حال رحم وکړي، آمين. ددې څخه وراخوا موبايل او انټرنيټ داسې اخلاق وژونکې واقعې رامينځ ته کړي دي چې د هغې په ليکلو باندې قلم شرميږي، د موبايل په واسطه د اشنائي، او بې غيرتۍ بې شميره واقعات شته چې د هغې څخه به هر څوک يوه اندازه خبر وي.

وماذالكُ على الله بعزيز، وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد وآله وصحبه اجمعين.

## تصوير څنګه جوړيږي

د تصوير يا عرفي عکس د جواز او د عدم جواز د مسئلې څخه وړاندې د کامرې په فن او حقيقت باندې لګ نظر اچوؤ ترڅو مو په دلائلو کې ذهن د فني معلوماتو څخه خالي نوي.

د تصوير اخيستلو په سلسله کې د ټولو کامرو هغه که پخوانۍ دي او که اوسنۍ دي، د تلويزيون دي او که د ويډيو دي، او که د موبايل او ډيجيټل کامرې دي، بنيادي کار او عمل يې يو دی؛ لهذا د تصوير په اخيستلو کې په جديد او قديم کامرو باندې مستقل د بحث ضرورت پاتې نه شو ، خو د تصوير په ساتلو او حفظ کولو کې د هرې کامرې د کار طريقه مختلفه وي، ددې وجې څخه په مختصر ډول ددې فرق بيانول ضروري دي.

کامره د سترګو په اصولو کار کوي، سترګې د الله تعالی قدرتي ورکړه ده او د ليدلو يوه فطري آله ده، ددې باوجود د رڼا محتاجې دي، نو دا مصنوعي آله څنګه د رڼا څخه بې نيازه کيدلې شي، دا وجه ده چې که قديم دي او که جديد دي هره کامره د رڼا په ذريعه تصوير اخلي، بعضې کامرې ددې مقصد لپاره په منظر باندې سپين رنګې تيزه رڼا اچوي کله چې دا رڼا په منظر باندې خوره شي نو ددې منظر شکل او صورت جوړ او په کامره کې داخليږي، او د

کامرې دوربین هغه په یوه نقطه باندې مرکوز کوي نو په دې طریقه د تصویر کار سر ته رسیږي. [۱]

## ضبط او حفظ / تصویر څنګه حفظ کیږي
## عامه کامره او د هغې کار او عمل

عامه کامره کې د ریل په فیته باندې د کیمیائي موادو یو نقش جوړیږي چې په ډیرو باریکو باریکو دانو باندې مشتمل وي، د تصویر جوړنکي رڼا چې کله په دې باریکو او حساسو دانو باندې پر یوځي نو هغه کیمیائي اصل بدل کړي، او د تصویر مطابق شکل اختیار کړي، په دې طریقه د تصویري نقشونو په صورت کې تصویر پرې ساتل کیږي، چې بیا د صفائي او پریمنځلو د یو اوږده کار څخه بعد د لیدلو جوګه کرځي.

او دا تصویر بیا په کاغذ باندې چاپ کیږي، او همدارنګه د رڼا په واسطه ددې عکس په پرده باندې هم اچول کیږي لیکن موجوده وخت کې دا قسم تصویرونه نشر جوګه نوي ، د نشر لپاره ضروري ده چې د پرمختللیو کامرو په مټ د هغه یو بل عکس یا تصویر واخیستل شي او د برقي اعداد څخه وروسته به د نشرکولو جوګه کرځي.[۲]

---

۱: (ډیجیټل تصویر ، للشیخ شعیب عالم ص۳۰)
۲: (ډیجیټل تصویر ص ۳۰)

## د ویډیو کامرې کار او عمل

د ویډیو په کامره کې تصویر د مقناطیس اقتباسي اشارو په واسطه حفظ کیږي، لیکن په دیکې تصویر غیر مرئي وي یا نه لیدونکی وي، لکه څرنګه چې په کیسټ کې آوازونه غیر مرئي نه لیدونکي وي، څرنګه چې په کیسټ کې د آوازونو څپې نه لیدونکي وي او بیا هم حفظ کیږي همدارنګه د ویډیو په کامره کې د تصویر اقتباسي اشارې هم حفظ کیږي.

داسې نه شې ویلی چې کوم شې چې مشهود نوي هغه موجود هم نوي ځکه چې کله دې کامره د مطلوبې آلې سره وصل کړه هغه یې بیا شیشې ته راوړي او هغه مقناطیسي اشارې د ترتیب څخه ترکیب جوړه وي او بیا د اصل شکل اختیار وي .(۱)

## د ټلویزوني کامرې کار او عمل

TVد تلویزون مخفف دی، د ټیلي معنی د دلرې ده، او د ویزون مطلب د لیدلو دی، یعني د لرې شیانو لیدل، په اسانو ټکو کې صوت او صورت دواړه تریو ځایه رسولو واله آلې ته تلویزون وایي، داهل فن ددې څخه مراد داسې طریقه ده چې په هغې کې

۱: (ډیجیټل تصویر ص ۳۰)

منظر یا تصویر د خپل آواز سره یو ځای د شعاعو د څپو په صورت کې نشر کیږي او تر لرې پورې رسول کیږي.

د تلویزون کامره د رڼا څپې په برقي ذراتو بدلوي ددې وجه داده چې د تلویزون شبکه په برقي ډول نشر کیږي ددې لپاره د رڼا څپې په برقي څپو تبدیل کول ضروري دي، په بل صورت ددې لیږل ناممکن دي، په برقي څپو د بدلیدو څخه وروسته بیا د هوا په واسطه د یو ځای څخه بل ځای ته لیږل کیږي او هلته بیا د بلې آلې په مټ رانیول کیږي، په سکرین یا شیشه باندې چې کله د دغو برقي څپو د ترتیب څخه سره یو ځای شي نو هغه صورت دوباره جوړیږي کوم صورت چې لومړی کامرې ته وصول شوی ؤو.[1]

## د ډیجیټل کامرې کار او عمل

په ډیجیټل کامره کې د رڼا لپاره انتهائي حساسه آله نصب شوې ده، چې کله د رڼا څپې په هغه آله باندې پریوځي هغه یې فورا په برقي روخ بدلوي، د برقي روخ د اندازې متعلق د تفصیل اعداد په صورت کې ساتل کیږي بیا د همدې تفصیل مطابق نوي رڼاګانې پیدا کوي او د اصل په څیر منظر وجود ته راوړي د تصویر د ضبط په سلسله کې دا د مختلفو کامرو یوه مختصره پیژندګلوي وه.

---

۱: (ډیجیټل تصویر ص ۳۰)

ددې فن د پوهانو په آند د تصوير اساسي اوصول اوس هم هغه دي کوم چې د اولې کامرې د ايجاد په وخت کې ؤو، په دې کې يوه ذره تغير او تبديل هم نه دی راغلی، که چيرته راغلي وي هغه به د تصوير په ذخيره يا د حفظ په باب کې راغلي وي، کيدای شي چې د حفظ په باب کې فرق به د فن له نظره څه اهميت لري، مګر د شرعي نقطه نظر څخه کوم مهم کار نه دی.(۱)

## د تصوير اظهار

تصوير، فلم، ويډيو، څنګه او د څه شي پر مټ ښکاره کيږي، هغه لکه د تلويزون سکرين، کمپيوټر، مانيټر، موبايل، فوټو ګرافي، پرده، وغيره نور هم داسې شيان ممکن دي چې د تصوير اظهار کولې شي، بلکه نن صبا په هوا کې هم د شبيه شکل ښکاره کول ممکن دي. (۲)

## د تصوير لغوي معني

تصوير د باب تفعيل مصدر دی، چې د هغې معنی د يو خاص شي صورت او هيئت جوړول دي، د الله تعالیٰ اسم صفتي هم المصور دی، چې د هغه معنیٰ ده يو شي ته خاص شکل او صورت ورکولو

۱: (ډيجيټل تصوير ص۳۱)

۲: (پورته حواله ص۳۱)

واله، چې د دې شکل په واسطه د غه شی د بل شي څخه ممتاز او جدا کيږي، د فقهاؤ په نزد عموما تصوير د محوري معنٰی پرځای د صورت په معنی کې استعماليږي، يعني جوړکړل شوي شي ته فقهاء په عرف کې تصوير وايي. (۱)

## تعريف او معني د صور شمسيه

**د اهل لغت په نزد د تصوير معنی او تعريف ؛**

في معجم المعاني ، الجامع معجم عربي عربي.

صور(اسم):الجمع صيران.مصدر صور، صور. صور شئ : ميله ، اعوجاجه. صور عنق: صفحته. صور نهر: شطه.

صور (فعل): صور صورا فهو اصور، وهي صورة والجمع : صور .

صور: مال و اعوج.

صور (فعل): صور يصور ، تصويرا، فهو مصور، والمفعول مصور، صور الشئ: جعل له صورة، رسمه، جسمه جعل له شكُل وصورة.

صور المنظر: اخذ له صورة بآلة التصوير ''(الكُاميرا) او رسمه على الورق بالقلم او الفرشاة.

صوره الشئ او الشخص: رسمه علي الورق او الحائط ونحوهما بالقلم او الفرجون او بالة التصوير.

۱ : ( فتاوٰی عثمانيه ج ۸ ص۳۳۵ ،/ الموسوعة الفقهية ج ۱۲ص ۹۳/۹۲)

صوره الامر : وصفه وصفا يكُشف عن جزئياته .

صور مستندا : استخرج نسخة مصورة منه.

صور (اسم) : صور : جمع صورة.

صور (اسم) : صور : جمع اصور . صور (اسم ) : صور : جمع صورة. صور (فعل):

صورت، اصور. صور لي ان الامر خلاف ذالكُ خيل لي صور له الشئ تخيله وبدا له .

صور (اسم) الجمع اصوار .

الصور : شئ كُالقرن ينفخ فيه .

الصور: يوق ينفخ فيه احد الملائكُة وهو اسرافيل الة الصورالموسيقية: الة موسيقية نحاسية .

الصور (اسم) : صورة الشئ عامة صورة كُل حي .

صورة (اسم): الجمع :صورات وصور وصور. الصورة: الشكل ، والتمثال المجسم.

صورة زيتية: ما يرسمه الرسام بفرشاته على قماش او خشب، لوحة زيتية.

اصوار: جمع صور، تصوير (اسم) : الجمع : تصويرات وتصاوير ، مصدر صور.

تصوير فيلم: تسجيل مناظر علي فيلم سينمائي (الثقافه والفنون) نقش صوره الاشيا او الاشخاص على لوح او حائط او نحوهما بالقلم او بالفرشة او باله التصوير ؛؛؛(الكاميرا) .

فرصة التصوير: فترة قصيرة مخصصة للصحافة لتصوير المشاركُين في حدث اخباري هام .

التصوير المجسم: (الثقافة والفنون) الفن او التقنية التي تصور الأجسام الصلبة علي سطح مستو ى.

نص التصوير: (الثقافة والفنون) نسخة من نص سينمائي او تلفزيوني مع المشاهد مرتبة على التوالي للتصوير او التسجيل.

الة التصوير: (الثقافة والفنون) الة تنقل صورة الأشياء تسقط على عدسة في جزئها الأمام ومن ثم الى شريط أو زجاج حساس في جزئها الخلفي فتطبع عليه الصورة بتأثي.([1])

## د تصوير تعريف

علامه راغب اسفهاني رَحِمَهُ ٱللَّهُ د تصوير تعريف داسې کړی دی فرمايي {الصورة ماينقش به الاعيان ويتميز بها غيرها}، د تصوير دا تعريف عام دی هغه که په لاس سره جوړ شوی صورت وي او که د فلم ويډيو کامرې په واسطه ښکاره کيدونکی صورت وي، هغه که د شعاعو په صورت کې وي، او که د شعاعو په واسطه په سکرين يا شيشه باندې د منظر په صورت ظاهريږي. ([2])

---

۱: (معجم الوسيط ص ۵۲۸، معجم الغني)
۲: (مفردات الفاظ القران ص ۳۰۷)

## د تصویر او عکس توپیر

تصویر د صاحب تصویر حکایت دی، د حقیقت ترجمان دی، په دیکې د انساني صنعت مداخله شته دا موجود او ساتل کیږي او د فتنې باعث دی، د ضرورت څخه زیات ښایست او سنګار دی، پاکو ارواحو ته تکلیف ورکونکی دی، د اغیارو سره مشابهت دی، د الله تعالیٰ د تخلیق صفت مقابله کول دي، او د شریعت ددې څخه سخت نفرت دی، ددې وجوهاتو په وجه باندې تصویر حرام او ناجائز دی.

ددې بالعکس عکس دی هغه جائز دی ځکه چې عکس د صاحب عکس تابع وي، عکس د خپل صاحب سیوری وي، عکس د اصل کټ مټ فوټوکاپي ده او عارضي وي نه پاتې کیدونکی وي، د رڼا څخه مرکب دی، قدرتي او فطري دی، وخت په وخت لحظه په لحظه وجود ته راځي او بیا فنا کیږي.

د تصویر څخه د شریعت سخت نفرت دی، کتل یې حرام دي، خو د عکس کتل شرعا ثابت دي جائز دي.

خلاصه دا چې د تصویر په حرمت کې او د عکس په جواز کې هیڅ اختلاف نشته، اختلاف په دیکې دی چې هغه شکل او صورت چې په سکرین یا شیشه باندې ښکاره کیږي دا څه شې دی عکس دی

که تصویر دی، یا د دوا ړو ترمینځ یو بل ته نږدې کوم بل شې دی، دا اختلافي نقطه په یو علمي بصیرت سره حل کولې شو.

د دې په ضمن کې مذکور دلائل د وضاحت لپاره په اول کې بحث شوی دي چې تصویر څه شې دی، څنګه اخیستل کیږي، څنګه ساتل کیږي، څنګه ښودل کیږي، او په دیکې د څومره آلاتو څخه کار اخیستل کیږي، او د مخکینیو او اوسنیو آلاتو توپیر څه دی، که چیرته د دغه مقاصد ملحوظ نه شي نو په دې موضوع باندې بحث کول هسې د وخت ضائع کول دي، کله چې دغه مقاصد ملحوظ شي او د ټکنالوجۍ پر مختک ته په کتو مونږ دې حقیقت ته رسیږو چې دا تصویر دی او په حرمت کې یې اختلاف ځای نه لري. (۱)

## تصویر او عکس

**فقیه العصر علامه مفتي رشیداحمد صاحب** رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ لیکلي دي چې تصویر او عکس بلکل دوه متضاد شیان دي، تصویر د یوشي پاتې کیدونکی محفوظ نقش وي، او عکس نه پاتې کیدونکی، د هغه وخت نقش وي، د اصل په غائب کیدو د هغه عکس هم غائب کیږي. (۲)

---

۱: (فتاوٰی عثمانیه ج۱۰ ص ۳۳۲)
۲: (احسن الفتاوي ج۸ ص ۳۰۲)

## عکس طبیعي او تصویر مصنوعي دی

د عکس او تصویر په مینځ کې توپیر باندې که لګ ژور فکر وکړو چې په دې دواړو کې د انسان په کومه اندازه تداخل دی، بیا خپل هدف ته په اسانۍ سره رسیدلې شو.

**جامع المعقول والمنقول حضرت علامه محمد قاسم نانوتوي** رَحِمَهُ اللّٰهُ د عکس او تصویر تر مینځ داسې فرق بیان کړی دی.... فرمایي، د اتحاد شکل ټول دوه صورتونه دي، یو تصویر اخیستل دي، او بل انعکاس دی، تصویر اخیستل د مصور فعل اختیاري دی، او تصویر دده ساخت او صنعت دی؛ او انعکاس یو اضافت غیر اختیاري دی او عکس یوه نتیجه ضروري ده مقابل یې اختیاري دی، نو عکس او انعکاس دواړه د اختیار څخه بهر دي.[1]

عکس یوازې په ائنه باندې موقوف نه دی بلکه انسان چې د هر شفاف شي په وړاندې ودریږي هغه که اوبه وي یا صفا مرمر وي، یا سټیل وي دده عکس جوړوي، ددې وجې نه عکس طبیعي دی، ددې جوړول د اختیار څخه وتلی دی، او ددې څخه د ځان ساتولو حکم د شریعت د اوصولو خلاف کار دی، ځکه چې د شریعت جوړښت د عدم حرج په اوصولو ولاړ دی، ځکه چې د عکس

۱: ( قبله نما ص ۳۳)

ممانعت او حرمت د سختۍ او تنګۍ عامل دی، ددې په خلاف چې د برقي آلاتو په مټ کوم صورتونه ظاهرېږي دا په مکمل ډول مصنوعي دي او د انسان په قدرت او اختیار کې دي.

**حضرت علامه نانوتوي** رَحِمَهُ ٱللَّهُ چې د عکس او تصویر کوم فرق بیان کړی دی د لغت څخه هم د هغې تائید کیږي، ځکه چې تصویر د باب تفعیل مصدر دی، ددې باب خاصیت جعل او صنت دی، ددې وجې نه تصویر مصنوع انساني وي په دیکې د انسان عمل او دخل وي، او نفس عکس د انسان د طاقت او اختیار څخه خارج وي.

**حضرت مفتي احمد ممتاز صاحب مدظله** په خپل یو مضمون کې لیکلي دي چې د شبیه ټول څلور اقسام دي.

**سورې**، **عکس**، **مجسمه**، **تصوير** په دې څلورو اقسامو کې اول دوه قسمه غیر اختیاري دي ددې وجې څخه جائز دي؛ او آخري دوه قسمه اختیاري دي ددې وجې څخه ناجائز دي.

**د شيخ العرب ناصرالدين الباني** رَحِمَهُ ٱللَّهُ **نظر** په عربي ممالکو کې هم په دې موضوع کافي بحثونه شوي دي او هم پرې مختلف رسائل او کتابونه لیکل شوي دي، ما پخپله په سعودي (عربستان) کې په دې موضوع د دوی کتابونه لوستلي دي اکثریت مشهور علماء یې د کامرې په واسطه د تصویر د حرمت قائل دي؛

بل طرف د ګوتو په شمېر يې تفصيل پکې کوي ددوی په ترديد کې د دوی مشهور شيخ ناصرالدين الباني رَحِمَهُ اللهُ دا سې ليکلي دي،

و قريب من هذا تفريق بعضهم بين الرسم باليد وبين التصوير الشمسي، يزعم انه ليس من عمل الانسان وليس من عمله فيه الا امساكُ الظل فقط كُذا زعموا، اما ذلكُ الجهد الجبار الذي صرف المخترع لهذه الآلة حتى استطاع ان يصور في لحظة ما لا يستطيعه بدونها في ساعات، فليس من عمل الانسان عند هؤلاء؟، وكُذالكُ توجيه المصور للآلة و تسديدها نحو الهدف المراد تصويره؟، وقبيل ذالكُ تركُيب ما يسمونه بالفلم ثم بعد ذالكُ تحميضه وغير ذالكُ مما لا اعرفه. فهذا ايضا ليس من عمل الانسان عند هؤلاء ايضا ؟،وثمرة التفريق عندهم انه يجوز تعليق صورة رجل في البيت اذا كُانت مصورة بالتصوير الشمسي، ولا يجوز ذالكُ اذا كُانت مصورة باليد، اما انا فلم اره مثلا الا جمود بعض اهل ظواهر قديما مثل قول احدهم في حديث نهي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عن البول في الماء الراكُد قال فالنهي عنه هو البول في الماء مباشرة ، اما لوبال في اناء ثم اراقه في الماء فهذا ليس منهيا عنه. [1]

**ترجمه:** ديته ورته خبره داده چې بعضې خلک په لاس سره دجوړ شوي تصوير کې او د برقي آلاتو په مټ اخيستل شوی تصوير کې توپير کوي د دوی فکر دادی چې د برقي تصوير په اخيستلو کې د انسان د کار دخل نشته، انسان فقط دومره کار کوي چې سيورې

---

١: (آداب الزفاف في السنة المطهرة ج ۴ص ٩٧)

يې درولې دی، بس فقط دغه د انسان مداخله ده، دا ددې خلکو خیال دی، او هر هغه بې دریغه او نه ستړی کیدونکي کوششونه چې مخترع د کامرې په ایجاد کې کړي دي، چې د هغې پرمټ په ډیر لږ وخت کې دومره تصویرونه اخیستل کیږي چې ددې څخه بغیر په ساعتونو کې نه اخیستل کیږي، دا ددوی په نظر انساني کار او دخل نه دی؟، ددې څخه لږ مخکې به فلم چې ورته وایي اچول کیده بیا به یې صفائي وغیره کارونه سر ته رسول کیده چې نور ماته معلومات نشته، دا کار هم د دوی په نظر د انسان عمل نه دی؟، ددې توپیر نتیجه د دوی په نظر داده چې کوم تصویر چې د برقي الاتو په مټ اخیستل شوی وي جائز دی په کور کې یې هم ساتلی شې، او کوم تصویر چې په لاس سره جوړ شوی وي حرام دی او په کور کې یې نه شې ساتلی.

زه د دوی لپاره د پخوانیو بعضو وچو اهل ظواهرو څخه بل مثال نه وینم، هغوی به ویل چې کوم حدیث شریف کې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ولاړه اوبو کې د متیازو څخه منع کړی ده، ددې مطلب او مقصد دادی چې بلا واسطه متیازې وکړي او که چیرته چا په یو لوښي کې متیازې وکړې او بیا یې په اوبو کې واړولې دا منع نه دي.

## د کامرې تصویر په ائینه باندې قیاس کول غلط دي

بعضې خلک فکر کوي چې کوم تصویر یا عرف کې چې عکس ورته وائي هغه دی چې په لاس سره جوړ شوی وي د داسې قسم تصویر په کور کې ساتل حرام دي، او کوم تصویر چې د کامرې په واسطه اخیستل کیږي او په کور کې ساتل کیږي حرام نه دي، دلیل دا وائي چې ددې مثال داسې دی لکه د اینې عکس چې دی، ددې خبرې په جواب کې **حضرت علامه مولانا اشرف علي تهانوي نورالله مرقده** داسې لیکلي دي.

د دوی دا خیال بلکل غلط دی او قیاس مع الفارق دی، ځکه چې په آئنه کې د آئینې د مخې څخه د انسان لرې کیدلو سره عکس هم زائل کیږي، په خلاف د تصویر هغه ثابت او برقراره وي، بله خبره داده چې په تصویر کې د انساني صنعت چې کامره ده دخل شته لهذا د کامرې تصویر بلکل د لاس د تصویر په حکم کې داخل دی. ددې مسئلې پوره وضاحت مخکې هم تیر شوی دی.(۱)

## ویډیو په چاړه باندې قیاس کول غلط دي

**پوښتنه :** د رمضان په دې میاشت کې د اعتکاف لپاره یوې خانقاه ته لاړم،ددغې خانقاه د پیر صاحب په طریقه کار باندې زه د کافي

۱: (امداد الفتاوی ج۴ ص ۲۵۳ ، فتاوی عثمانیه ج ۱۰ ص ۳۳۵)

ډېرې مودې څخه ذکر کوم،داخل چې زه کله د بیعت په اراده هلته لاړم نو یو عجیبه منظر مې تر سترګو شو،پیر صاحب به د ماسپښین او مازدیګر تر مینځ یو ساعت دقرآن کریم درس ورکولو،چې دهغه به ویډیو فلم جوړیده،ما چې کله دغه شئ ولیده نو ما دبیعت اراده بدله کړه ،خپل ځای ته تر راتلو وروسته مې هغه ته یو خط ولیکه ،په خط کې مې هغه ته ولیکل چې علماء کرام خو ویډیو ناجائزه ګڼي ،پیر صاحب په جواب کې راته ولیکل چې که ویډیو فلم وي، که کلاشنکوف وي،یا چاړه وي،او که چاقو وي ،د جائزو کارونو لپاره دهغوی استعمال جائزدی، او د ناجائزو کارونو لپاره یې استعمال ناجائز دی-

اوس تاسو مهرباني وفرمایئ چې ددین علماء او مفتیان صاحبان په دې سلسله کې څه فرمایي ؟آیا ددین دتبلیغ لپاره ویډیو فلم استعمالول جائز دي ؟ اوکه نوي نو جواب راکړئ، ځکه چې زما سره هم ددې یو مثبت جواب وي،دهغه پیر صاحب جواب هم زه تاسو ته درلیږم.

**جواب** : په ویډیو فلم باندې تصویرونه اخیستل کیږي او د ساه لرونکی (جاندار) تصویر حرام دی،او په اسلامي شریعت کې دحرامو اجازت نشته،ځکه خو ددې په چاړه ،چاقو باندې قیاس

کول غلط دي، او د هغه پير صاحب اجتهاد ناروا دی، تاسو بنه وکړل چې د داسې غلط سړي نه مو بيعت وانه خيست.(١)

## تصوير ته ورته اصطلاحات

**تماثيل:** د ذي روح شکل او صورت ته تمثال ويل کيږي، تصوير او صورت عام دی ذي روح او غير ذي روح دواړو ته شامل دی، عام عرف کې عموما صورت او تمثيل په يوه معنی کې استماليږي. (٢)

**الرسم:** نن صبا دور کې په لاس جوړ شوي تصويرونو، نقشونو، قدرتي منظرونو، او داسې نورو شيانو ته رسم ويل کيږي، په برقي کامرو او ديته ورته نورو اسبابو د تصوير اخيستلو ته رسم نه شې ويلې.

**النحت :** د غټې کاڼي يا لرګي تراشل او له هغې څخه کوم شکل او صورت جوړولو ته نحت ويل کيږې، په قرآن کريم کې هم په همدې معنی کې استعمال شوی دی.

**الصورة المسطحة غير ذات ظل**..د دې څخه هغه تصوير مراد دی چې سطحي وي يعنی مجسم نه وي سيورې نه لري، لکه په کاغذ يا ديوال يا د تلويزون او موبايل په سکرين باندې جوړونکي تصويرونه .

**الصورة المسطحة ذات ظل** د دې څخه هغه تصويرونه مراد دي چې هغه

---

١: (کفايت المفتي ج ٨ ص ٣٢٩)
٢: (رد المحتار ج ٢ ص ۴١٢)

په مجسم شکل او صورت باندې وي، هغه که د کاڼي وي خاوره وي، او سپنه پلاستیک وغیره چې د هر قسم مادې څخه جوړ وي.[1]

د احنافو په نزد د تصویر د مذکوره اقسامو حکم یو شان دی، پورته مذکوره اقسامو ته الصورة الثانية ویل کیږي.[2]

## هغه تصویر چې سیوری نلري (صورة غیر ذات ظل)

## لکه د کامرې، د دېوال، د کاغذ، د رخت، وغیره تصویرونه

تصویر ته ورته اصطلاحات مخکې ذکر شول، یو له هغوی څخه (صورة غیر ذات ظل) هم وو، چې د کامرې تصویر، په دیوال باندې رسم شوی تصویر، د کاغذ وغیره تصویرونه ددې جملې څخه دی.

د عربي ممالکو (شرق الاوسط) د شوافعو څخه را نیولې بیا تر برصغیر افغانستان، پاکستان، هندوستان، بنګله دېش، احنافو پورې ټول علماء دغه قسم تصویر د تصویر په حکم کې داخل بولي او د ضرورت څخه بغیر یې د حرمت قائل دي.

خو د بعضې مالکیه ؤ، او بعضې حنابله ؤ علماء دا قسم تصویر جائز بولي، او س پوښتنه داده چې آیا په دغه قسم تصویر باندې هم په احادیثو کې تصریح شوی ده کنه ؟

---

١: (الموسوعة الفقهية ج ١٢ ص ٩٣)

٢: (فتاوی عثمانيه ج ١٠ ص ٣٣٥)

دې پوښتنې ته په جواب کې لاندې دوه حديثونه مبارک وړاندې کوو. "عن اسامة بن زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قال: دخلت على رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فى الكُعبة ورأى صورا قال: فدعا بدلو من ماء فأتيته به فجعل يمحوها ويقول: (قاتل الله قوما يصورون ما لا يخلقون)" (۱)

همدارنګه بل حديث مبارک کې راځي: "عن جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: ان النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أمر عمر بن الخطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ زمن الفتح وهو بالبطحاء أن يأتي الكُعبة، فيمحوا كُل صورة فيها، فلم يدخلها النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حتى محيت كُل صورة فيها" (۲)

د تصوير په حرمت کې احاديث مطلق دي، کوم قسم استثنی نشته پکښې، ځکه چې څومره أحاديث د تصوير په حرمت کې راغلي دي عام دي او پخپل عموم پاتې دي.

داچې څوک د تصوير په تقسيم کې تفصيل کوي او وايي چې د تصوير مختلف اقسام دي لکه متجسد او غير متجسد، ملون غير ملون، ذات ظل، او غير ذات ظل وغيره وغيره.

د موبايل او کامرې تصوير ته د جواز موندلو لپاره آخري قسم چې غير ذات ظل (چې سيورى نلري) جائز بولي، دليل يې دادی چې په

۱: (رواه الطبراني في المعجم الكبير ۴۰۷)
۲: (رواه ابودؤد ۴۱۵۲)

دا قسم تصويرکې چې سيورى نلري، چې په نن صبا دورکې دموبايل او کامرې تصويرونه دي نص نه دى وارد شوى .

څوک چې تصوير غير ذات ظل حرام بولي دهغوى لپاره دغه مذکوره حديثين دليل دى، ځکه چې په دې دواړو حديثونو کې د دا قسم تصوير په حرمت باندې تصريح شوي ده،او صريح نص پکښې وارد شوى دى .

همدارنګه د حضرت عائشې صديقې رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهَا د پردې په حديث کې هم په غير ذات ظل تصوير باندې تصريح شوي ده،او نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يې انکار کړى دى،هغه هم غير ذات ظل وو لهذا د کامرې تصوير هم د هغه له جملې څخه دى .

بهر تقدير که هرڅومره دا مسئله ښکته پورته کړو ، او هرڅو مره عقلي دلائل ورته ووايو د جواز لپاره يې هيڅ معقول صورت نشته،ځکه چې تصوير هماغه تصوير دى فقط آله د تصوير کې تغير راغلى دى.

همدارنګه د عربو مشهورو علماؤ د دا قسم تصويرونو د پوښتلو په جواب کې او هم پخپلو فتاواؤ کې ليکلي چې ''التصوير لا يجوز،لا باليد ولا بغير اليد،التصوير کُله منکُر ، والرسول عليه الصلاوة والسلام لعن المصورين''.(١)

١ : ( مفتي عام للمملكة ابن باز صاحب )

**السؤال :** ما حكم التصوير بالكاميرا صورا عائلية، وماشابهها من أجل الذكرى والتسلية فقط لاغير؟

**الاجابة :** تصوير الاحياء حرام ،بل من كبائر الذنوب،سواء اتخذ المصور ذالكُ مهنة له ام لم يتخذها مهنة،وسواء كان التصوير نقشا ام رسما بالقلم ونحوه ،ام عكسا بالكاميرا و نحوها من الآلات ام نحتا لاحجار ونحوها....الخ وسواء كان ذالكُ للذكرى ام لغيرها؛للاحاديث الوارة في ذالكُ، وهي عامة في انواع التصوير والصور للاحياء ولا يستثنى من ذالكُ الا ما دعت اليه الضرورة. (1)

خو بل طرفته د مصر بعضو علماؤ د ډیجیټل تصویر دجواز لپاره بې شمېره عقلي دلائل تراشلي دي،که د فن له نظره دې دلائلو ته وکتل شي هيڅ دمنلو وړ نه دي

يو طرفته د نقل او د اهل لغت سره مخالف دي،بل طرفته دفني معلوماتو څخه عاري دي،که څه هم چې ما دلته ذکر نه کړل،زما په نظر بغير د اذهانو د تشويش څخه بله ثمره نده پرې مرتبه . والله تعالى اعلم بالصواب .

دغه راز: **فقيه العصر علامة مفتي تقي عثماني حفظه الله** ، ليکلي دي چې د برقي تصوير او ويډيو په مسئله کې د بعضو علماؤ درې اقوال او نظرونه دي.

1 : ( مجموع الفتاوى اللجنة الدائمة بالسعودية۔المجلد ۱۴ )

**اول قول**: بعضې علماء برقي تصوير د تصوير په حکم کې داخل بولي.

**دوهم قول**: دبعضې علماؤ په نظر په برقي تصوير باندې د تصوير اطلاق نه کیږي.

**دریم قول**: بعضې علماؤ فرمایلي چې برقي تصوير زمونږ په رأيه تصوير دی، لیکن دا چې دا په حکم د تصوير کې دی او که ندی، د یو څخه زيات فقهي نظرونه موجود دي، ددې لپاره دمجتهد فيه ګرځولو په بناء د حاجت شرعيه په وخت لکه د جهاد وغيره په موقع ددې په استعمال کې ګنجائش شته.

او زما په نزد دوهم نمبر نظر راجح دی، خو احتياط په اول نمبر نظر کې دی. والله تعالی اعلم بالصواب.[1]

همدارنګه د تقي صاحب حفظه الله څخه یو سائل د پوښتنې په ځواب کې داسې ویلي دي، دده څخه پوښتنه شویده چې په جومات کې تصوير اخیستل څه حکم لري؟

**جواب**: تصوير اخیستل که په جومات کې وي او که د جومات څخه بهر وي حرام دي.[2]

---

۱: (ډیجیټل تصویر اور سي ډي ۱۲۱)
۲: (فتاوی عثماني ج۱ ص ۴۰۲)

## لوی ظالم څوک دی؟

ظلم په مختلفو ديني او دنيوي اومورو کې شوی او هم کيږي او د هر ظالم او هر ظلم په حقله مختلف وعيدونه راغلي دي، زمونږ مطلب په هغوی باندې احاطه نده، او نه دا وړه رساله په هغوی د احاطې جوګه ده، فقط د خپلې موضوع متعلق ظلم او ظالم په ګوته کوؤ.

نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي؛ قال الله تعالى: اوَ مَن اظلم ممن ذهب بخلق کُخلقي فليخلقوا ذرة او ليخلقوا حبة او شعيرة.(۱)

نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په يو حديث قدسي کې فرمايي چې الله تعالى وفرمايلددې څخه به لوی ظالم څوک وي چې په خلقت کې زما سره مشابهت اختيار کړي، دوی دې يوه ذره پيدا کړي يا دې يوه دانه جوړه کړي، يادې يوه وربشه پيدا اوجوړه کړي؛

مطلب دا چې الله تعالى تصوير يا عرفي عکس جوړول اخيستل د خپلې خدائي او د تخليق په کار کې دخل او مترادف ګرځولي دي، تصوير اخيستل داسې دي لکه د الله تعالى سره د تخليق په صفت کې مشابهت کول چې د هغې ګناه غټوالی ظاهر دی.

بل حديث شريف کې راځي، وعن عائشة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قالت قال رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشد الناس عذابا يوم القيامة الذين يضاهؤن بخلق الله.(۲)

---

۱: (متفق عليه، مشکوة شريف)

۲: (متفق عليه)

د حضـرت عائشــه رضي الله عنها څخـه روایـت دی فرمـایي چـې نبـي کـریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې د قیامت په ورځ به د ټولو څخه سخت عذاب د هغو خلکو وي چې په تخلیق کې د الله تعالی مشابهت کوي. (۱)

## تصویر جوړول اخیستل ګناه کبیره ده

د اسلامي هدایاتو لـه نظره تصویر اخیسـتل، سـاتل او حفـظ کـول ګناه کبیره ده، د امت علماؤ او ایمه ؤ په دې باندې اجماع او متفـق دي، په دې باب کې مختلف صریح احادیث موجود دي چې د هغـې څه حصه به مونږ دلته ذکر کړو چې د هغـوی لـه مخـې بـه مـونږ تـه دا واضحه شي چې د تصویر اخیستل ساتل او حفظ کول څومره د الله جل جلاله او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم د خفګان سبب ګرځي.

د حضرت عـائشه صدیقه رضي الله عنها څخه روایت دی فرمایي:

''دخل علی رسول الله صلی الله علیه وسلم وفي البیت قـرام فیـه صور فتلون وجهـه ثـم تنـاول السـتر فهتکـه ثـم قـال ان مـن اشـد النـاس عـذابا یـوم القیامـة الـذین یشتبهون بخلق الله'' .(۲)

**ترجمه:** یوځل رسول الله صلی الله علیه وسلم زما کور ته تشریف راوړو او په کوټـه کـې یـوه نـرۍ پـرده وه پـه هغـې پـرده بـانـدې تصـویرونه ؤو، د

۱: (فتاوی یوسفیه / آپ کی مسائل ج ۸ ص ۳۹۴)
۲: (رواه البخاري حدیث ۵۲۴۴، مسلم حدیث ۳۹۴۷)

رسول الله صلی الله علیه وسلم د مخ رنګ د غصې له وجې بدل شو، پرده يې راواخيسته ويې غورځوله، بيا يې وفرمايل چې د قيامت په ورځ به تر ټولو سخت عذاب د هغو خلکو وي چې د الله تعالی د تخليق د صفت نقل کوي، يعنې تصويرونه اخلي او جوړوی يې.

د حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی فرمايي؛ سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم يقول ان اشد الناس عذابا يوم القيامة المصورون. (١)

**ترجمه:** ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه واوريدل چې فرمايل يې د قيامت په ورځ به د ټولو څخه سخت عذاب د تصوير جوړونکي وي. د حضرت قتاده رضي الله عنه څخه روايت دی فرمايي چې زه د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه سره ناست وم يو چا د تصوير متعلق پوښتنه ترې وکړه ده ورته وفرمايل" سمعت محمدا صلی الله علیه وسلم يقول من صور صورة في الدنيا كلف يوم القيامة ان ينفخ فيها وليس بنافخ". (٢)

**ترجمه:** ما د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څخه واوريدل چې فرمايل يې چا چې په دنيا کې د ساه لرونکی تصوير جوړ کړ په ورځ د قيامت به يې الله تعالی په روح وراچولو مجبور کړي خو دئ به روح نه شي اچولې ده ته به همداسې عذاب ورکول کيږي.

---

١: (رواه البخاري حديث ٥٤٩٤، ومسلم حديث ٣٩٤٧)
٢: (رواه البخاري برقم ٢.٥٥، ومسلم برقم ٣٩٤٢)

د حضرت ابو طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څخه روایت دی فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل "لا تدخل الملائكة بيتا فيه كلب او صورة"- (١)

ترجمه: د الله جَلَّ جَلَالُهُ فریښتې هغه کورته نه داخلیږي چې په هغه کور کې سپئ اویا تصویر وي، همدارنګه رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فتح مکې په وخت **وجاء الحق وزهق الباطل** وویل دبتانو مجسمې رانسکورې شوې.(٢)

نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د تصویرونو ختمولو لپاره لیږل وؤ، همدارنګه حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حضرت ابوالهیاج رَحِمَهُ اللَّهُ ته وفرمایل " الا ابعثك علي ما بعثني عليه رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان لا تدع تمثالا الا طمسته". (٣)

**ترجمه:** ای ابوالهیاج آیا په هغه کار پسې دې ونه لیږم په کوم پسې چې زه رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لیګلې وم، هغه دادی چې تاسو تصویر مه پریږدئ تر څو مو چې ختم کړی نوي.

دا ټول په دی خبره کامل او واضح دلیلونه دي چې تصویر جوړول، اخیستل، اوساتل، د الله تعالی او د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خفګان او

١: (رواه البخاري برقم ٥٤٩٣، ومسلم برقم ٣٩٢٩)
٢: (رواه البخاري ٢٤٧٨)
٣: (رواه مسلم برقم ٩٢٩، والنسائ ٢٠٣١)

غصې سبب ګرځي، ددې وجې څخه علماؤ د هر قسم ذي روح تصوير حرام اوناجائز بللي دی هغه که مجسم وي او که غير مجسم وي.(۱)

## دفقهاؤ اقوال

شيخ الاسلام علامه محي الدين نووي شافعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايي؛ ''قال اصحابنا وغيرهم من العلماء تصوير صورة الحيوان حرام شديد التحريم وهومن الكُبائر لانه متوعد عليه بهذا الوعيد الشديد مذكور في الاحاديث وسواء صناعته بما يمتهن او بغيره فصنعته حرام بكُل حال لانه فيه مضاهات لخلق الله تعالى وسواء ما كُان في ثوب او بساط او درهم او دينار او فلس او اناء او حائط او غيرها و اما تصوير صورة شجر ورحال الابل وغير ذالكُ لما ليس فيه صورة حيوان فليس بحرام (وبعد سطرتين ) ولا فرق في هذا كُله بين ماله ظل ومالا ظله له هذا تلخيص مذهبنا في المسئلة وبمعناه قال جماهير العلماء من الصحابة رضى الله تعالى عنهم والتابعين ومن بعدهم وهو مذهب الثوري، وأبي حنيفة و غيرهم رحمهم الله تعالى وقال بعض السلف انما ينهي عما كُان له ظل ولا باس بالصورة التي ليس لها ظل وهذا مذهب باطل، فان الستر الذي انكُر النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصورة فيه لا شكُ احد انه مذموم وليس لصورته ظل مع باقي الأحاديث المطلقة في كُل صورة''.(۲)

**ترجمه:** زمونږ شافعي علماؤ او نورو علماؤ فرمايلي دي چې د ذي روح (ساه لرونکي) تصوير جوړول سخت حرام دي او ګناه کبيره ده،

۱: (فتاوی یوسفیه / آپ کی مسائل ج ۸ ص ۳۹۸)
۲: (شرح النووي علي صحيح مسلم ج۲ ص ۱۹۹)

ددې وجې څخه سخت وعیدونه پرې راغلي دي، سره له دې که دا تصویر د ذلت او بې عزتۍ لپاره جوړشوی وي یا د کوم بل مقصد لپاره وي، بهر حال حرام دی، ځکه چې په دیکې د الله تعالیٰ د تخلیق صفت مقابله ده، هغه که په رخت، فرش، درهم، دینار، پیسه، لوښي، دیوال، یا کوم بل څه باندې جوړ شوی وي، البته د ونو او بوټو یا د داسې شي تصویر چې روح نه لري جوړول جائز دي.

په دې ټولو اقسامو کې سیوري لرونکي اونه لرونکي هیڅ توپیر نلري دواړه قسمونه یو شان حرام دي، په دې مسئله کې زموږ د مذهب دا خلاصه ده او د جمهورو صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او تابعینو او د ددې څخه وروسته علماؤ رحمهم الله او د امام سفیان ثوري امام مالک امام ابوحنیفه او داسې نور د دوی همدا مذهب دی، او د بعضې سلفو دا قول دی وائي چې کوم جسم چې سیورې لري تصویر یې حرام دی، او کوم چې سیورې نه لري په هغه کې حرج نشته دا مذهب باطل دی، ځکه چې کومه پرده باندې چې تصویر ؤو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغې انکار وکړ، بې شک او شبه هغه مذموم ؤو حال دا چې د هغه تصویر سیورې نه ؤو باقي احادیث د هر تصویر متعلق مطلق دي، یعني که سیورې لري او کنه حرمت ترې ثابت دي. [1]

---

۱: (شرح مسلم)

**علامه بدرالدين عيني** رَحِمَهُ اللَّهُ **فرمايي؛**

''و في التوضيع قال اصحابنا وغيرهم تصوير صورة الحيوان حرام اشد التحريم وهو من الكُبائر وسواء صنعه لما يمتهن او لغيره فحرام بكُل حال لأن فيه مضاهاة لخلق الله ، وسواء كُان في ثوب او بساط او دينار او درهم او فلس او اناء او حائط وما ليس فيه صورة حيوان كُالشجر ونحوه فليس بحرام ، وسواء وفي هذا كُله ماله ظل وما لا ظل له. وبمعناه قال جماعة العلماء مالك والثوري وابوحنيفة وغيرهم رحمهم الله تعالى'' .([1])

**ترجمه:** په توضيح کې راغلي دي چې زمونږ فقهاؤ (حنفيه) او نورو علماؤ فرمايلي دي چې د ذي روح ژوندي حيوان تصوير سخت حرام دی، او د کبيره ګناهونو څخه دی، هغه که د پايماليدلو يا ذلت لپاره جوړ وي او که د کوم بل مقصد لپاره وي بهر حال حرام دي، ځکه چې په ديکې د الله تعالیٰ د تخليق صفت مقابله ده هغه که په رخت باندې وي، فرش وي ، دينار، درهم، پيسې، لوښي، او ديوال باندې وي، هوکه چيرته د ژوندي ساه لرونکي حيوان تصوير نه وؤ، د ونې بوټي وغيره وؤ بيا حرام نه دي، په ديکې که کوم جسم سيورې لري او کنه سره برابر دي، د علماؤ جماعت هم همدا خبره کوي، امام مالک، سفيان ثوري، او امام ابوحنيفه رحمهم الله د دوی ټولو همدا قول دی. ([2])

---

١: (عمدة القاري ج٢٢ ص ٧٠)

٢: (عمدة القاري شرح البخاري)

## د غير ذي روح تصويرونه

د غرونو، دريابونو، لمرسترګې، سپوږمۍ، ونو بوټو، ځنګلونو او داسې نورو قدرتي منظرو او شيانو تصويرونه جوړه ول، اخيستل جائز دي، حضرت عبد الله ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ يو سړی د ذي روح د تصوير جوړه ولو څخه منع کړ بيا يې ورته وفرمايل. ''ويحكُ ان ابيت الا ان تصنع . فعليكُ بهذا الشجر وكُل شئ ليس فيه روح''.(١)

**ترجمه:** هلاک شې که ته نه منع کيږې خامخا يې جوړه وې نو ددې ونې تصوير جوړ کړه او د هر هغه شی تصوير جوړ کړه چې روح نلري؛ په دې باندې د ټولو فقهاؤ اتفاق دی، ليکن امام مجاهد رَحِمَهُ اللهُ د ګلانو دونې تصوير څخه منع کړې ده، خو دا قول شاذ دی، او د بعضې فقهاؤ دا قول دی چې که چيرته ددې مخلوقاتو د عبادت کولو شک وي، نو هلته ددې قسم تصوير جوړه ول هم مکروه دي.(٢)

## د تصوير د حرمت علتونه

څرنګه چې د شريعت مطهره د هر حکم لپاره ضرور نا ضرور يو نايو علت وي، همدارنګه فقهاء کرامو د احاديثو مبارکه ؤ څخه

---

١: (مرقاة المفاتيح رقم ۴۵۰۷)

٢: (الموسوعة الفقهية الكوتية ج١٢ ص ٩٧، فتاوي عثمانيه ج١٠ ص ٣٣٧) (كفايت المفتي ج ٩ ص ٢۴٩)

استدلال کړی او د تصویرونو د حرمت لپاره یې څو علتونه ذکر کړي دي، د دې علتونو په وجود کې تصویر حرام ګرځول شوی دی.

[۱] د تصویر په جوړه ولو کې د الله تعالی د مصورې صفت او د تخلیق صفت مشابهت دی.(۱)

[۲] تصویر د غیرالله په غلو او د حدودو څخه د تجاوز ذریعه ده.(۲)

[۳] د مشرکینو سره مشابهت دی اګر که تصویر جوړونکي د مشابهت نیت نوي کړی، ''ویکُره التشبه بهم في المذموم وان لم یقصده''. (۳)

او که د تصویونو په جوړولو کې یې د مشرکینو سره مشابهت او یا د الله تعالی د صفت تخلیق او تصویر مشابهت مقصود ؤو، بیا خبره د کفر حد ته رسیږي، **علامه ابن حجر** رَحِمَهُ اللَّهُ فرمایي ؛''فانه یصیر بذلكُ القصد کُفرا واما ما عدا ذلكُ فیحرم علیه، ویأثم لکُن اثمه دون اثم المضاهي''. (٤)

[۴] تصویرونه د جنسي خواهشاتو او فتنو ذریعه ده، ځکه چې نظر او نفس هر یو دې طرف ته مائل کیږي. ؛ لأن النظر الیها یفتن وبعض

---

۱: (فتح الباري کتاب اللباس باب نقض التصاویر رقم ۵۹۵۳)
۲: (فتح الباري باب التصاویر رقم ۱۱)
۳: (فتح الباري کتاب الصلاة باب ما یفسد الصلاة ج۲ ص ۴۱۷)
۴: (فتح الباري کتا الباس باب عذاب المصور ج۱۱ ص ۵۸۳)(رد المحتار علي الدرالمختار ج۲ ص ۴۱۹)

النفوس اليها تميل .(١)

**[٥]** د تصويرونو په موجودګۍ کې د رحمت فرښتې کور يا هغه ځای ته چې هلته تصوير وي نه راځي، البته کرام الکاتبين او د حفاظت فريښتې داخلېږي. (٢)

## د حلت او حرمت اختيار هيچا ته حاصل نه دی

ترکومې پورې چې د افراطيت شخه دلاندې راکوزيدو خبره يا دمشورې تعلق دی،ما مخکې عرض کړي چې د حلال او حرام اختيار دامت يوه سړي ته هم نه دی ورکړل شوی،او د الله تعالی حرام کړل شوي کار ته حرام ويل افراطيت نا ،بلکې عين ايمان دی، که داخبره د شاهي تخت دلفظ سره تعبير کول صحيح دي،نو داد ايمان شاهي تخت دی،او د ايمان دشاهي تخت شخه دلاندې راکوزيدو مشوره يو مسلمان هم نه شي ورکولی او کوم سړی چې دلاندې راکوزيدو اراده وکړي،هغه مسلمان نه شي پاتې کېدای .(٣)

**حضرت مولانا محمد يوسف لدهيانوي** رَحِمَهُ اللَّهُ د يوې پوښتنې په ځواب کې ليکي چې فلم او تصوير الله جَلَّ جَلَالُهُ او **دهغه رسول** صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،

---

١: (فتح الباري پورته حواله ج١١ ص ٥٨٣)

٢: (پورته حواله باب التصاوير رقم ٥٩٤٩، فتاوی عثمانيه ج١٠ ص ٣٣٨) (کفايت المفتي ج ٩ ص ٢٥٢ )

٣: (فتاوی يوسفيه ج ٨ ص ٣٧٢)

حرام ګرځولي دي، او ددې په جوړونکو يې لعنت فرمايلی دی، د کوثر صاحب دامشوره چې دا حرام او ملعون شئ دې دا سلامي عظمت لپاره استعمال کړل شي، ددې مثال بالکل داسې دی لکه يو سړی داسې مشوره ورکړي، چې په دې زمانه کې د سود څخه خلاصئ ممکن نه دی، ځکه چې ددې د حرمت او حلت بحث خو بې کاره دی، په کار دا وو چې ټول اسلامي ملکونه د سود په نجاست سره جوماتونه تعمير کړي، زه ددې په پوهېدو بې وسه يم چې آخر دا به کوم يو اسلام وي چې د هغه عظمت به د يو حرام او ملعون شي په واسطه او ذريعه کاميا ب شي؟ چې د حلال او حرام بحثونه په خپل ځای پرېښودل شي، نو بيا اسلام چېرته پاتې شو، د هغه اسلام چې تبليغ، اشاعت او عظمت او سربلندي غوښتونکي ده......؟

کوثر صاحب ته به شايد دا معلومات نوي چې دين اسلام ته د خپل اشاعت او سربلندۍ لپاره ددې شيطاني آلاتو ضرورت نشته، او ددې شيطاني آلاتو پر مټ چې کوم شئ ترقي بيامومي هغه به اسلام د رسول الله صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له لوري راوړل شوی اسلام نه وي، بلکې د کوثر صاحب او د هغه ددوستانو جوړ شوی اسلام به وي، په هغه کې به نه د کفر او اسلام فرق وي، نه به پکې د حلالو او حرامو فرق وي، نه د جائز او ناجائز سوال، نه به پکې د سړي او ښځې حدود معلوم وي، نه به د نېکۍ او بدۍ تصور وي، نه به

دا خلاص او نفاق په مېنځ کې فرق وي، په دا سې اسلام کې به هرڅه کېږي، خو د رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسلام به نه وي .

که د يو صاحب دا مقصد وي چې په حج، غزوات، وغيره اسلامي نښو باندې دې فلم جوړ کړل شي، نو دا د دې څخه هم بدترين شئ دی، ځکه چې اسلامي نښې د تفريح او لهو لعب موضوع جوړول د شعائر اسلام بې حرمتي او توهين دی، اګرچې د دا سې کونکی به دا مقصد نه وي، بلکې هغوی د دې د پوهېدلو صلاحيت هم نلري .(١)

## په تصوير اخيستلو کې د قصدا او طبعا فرق

د مذکوره بيانونو څخه دا خبره ثابته شوه چې د ذي روح تصوير جوړول اخيستل مطلقا حرام او ناجائز دي، هغه که په قلم وي، يا کامره وغيره تصويري آلاتو سره وي، په دې مسئله کې **حضرت علامه مفتي محمد شفيع** رَحِمَهُ ٱللَّهُ ليکلي دي فرمايي چې د موجوده جديدو آلاتو په باره کې يو نوی سوال پيدا کېږي، هغه دا چې د ذي روح تصوير اخيستل کله بالقصد والاختيار سره وي او کله کله بلا قصد يا تبعا په دې آلاتو کې د ذي روح تصوير راشي، د مثال په توګه يو څوک د کور ، بنګلې، باغ، بازار، يا د سنګر تصوير اخلي او هلته د خلکو د رفت آمد په وجه د انسانانو حيواناتو يو خوا ته

١ : (فتاوى يوسفيه / آپ كى مسائل ج ٨ ص ٣٧٢-٣٧٧ )

کول د چا په اختیار کې نوي، نو د داسې مشخصو ځایونو د تصویر اخیستلو په ضمن کې تبعا د کوم انسان یا حیوان تصویر هم راځي، یا دا چې یو نفر ډیر احتیاط کوي انسان او حیوان یو طرف ته کوي او تصویر اخلي خو د تصویر اخیستلو په عین وخت کې انسان یا حیوان مخې ته راغی، په دې صورتونو کې د ذي روح تصویر بلا قصد او اراده تبعا واخیستل شو آیا دا هم ناجائز دی؟ او که شرعا په دیکې څه سهولت شته،

داحنافو په کتابونو کې د ډیر تفتیش اوتلاش باوجود ددې صورت کومه جزئیه مې پیدانکړه لیکن د قواعدو کلیه ؤ څخه ددې جواز معلومیږي.

**كما يستفاد من القاعدة الثامنة من الاشباه والنظائر من قوله الامور بمقاصدها وعدلها نظائر عديدة من الجزئيات الفقهية.**

او سیدي **حکیم الامت حضرت تهانوي** رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمایي چې ددې جواز ځان ته معنی ده چې د تصویر اخیستلو ګناه به نوي، لیکن د حدیث عموم ته چې ګورو (**ولا تمثال الا طمسته**) ددې تصویر ابقاء ناجائزه ده. [1]

---

١ : (تصویر کي شرعي احکام دعلامه مفتي محمد شفیع رَحِمَهُ ٱللَّهُ ص ۷۴)

## د پاسپورټ او پیژندپاڼې لپاره تصویر اخیستل

**حضرت علامه مفتي محمد شفیع** رَحِمَهُ اللّٰهُ لیکلي دي ، بعضې لرې ملکونو ته په سفر کولو کې د حکومتونو لخوا مسافر په دې مجبور کیږي چې پاسپورټ به ضرور اخلي او هم به خپل عکس اخلي، که چیرته دا سفر د ضرورت شرعي لپاره یا د معاش شدید ضرورت لپاره ؤو نو د اضطرار په وجه تصویر اخیستل جائز دي.

لما في شرح السير الكبير وان تحققت الحاجة الي استعمال السلاح الذي فيه تماثيل فلا باس باستعماله لان موضع الضرورة مستثناة من الحرمة كما في تناول الميتة.

که په دقیق نظر سره وکتلې شي کوم شیان چې شریعت حرام کړي دي، د دغو شیانو څخه یوشی هم داسې نه دی چې د هغې لپاره دې انسان په خپل ژوند کې په حقیقي توګه مجبور او مضطرشي محض د سهولت په لیدلو حکومتونو تصویر اخیستل لازم کړي دي لیکن کله چې په دنیا کې تصویر ایجاد شوی نه ؤو آیا هغه وخت د دنیا کاروبارونه نه چلیدل؟ که لګ په ژوره فکر دې خبرې ته متوجه شو څومره دوکه، فریب، چل ول، چې د تصویرونو په زمانه کې زیات شوی دی دومره په پخوا ساده زمانه کې ددې ډیره حصه نوه موجوده.

**خلاصه داده** چې د ځان تصویر اخیستل یا د بل چا څخه تصویر اخیستل مطلقا حرام دي، بغیر د اضطرار او مجبورۍ څخه جائز نه دي، څه وخت چې اضطرار ؤو د هغه د لرې کولو کوشش هم ضروري دی، که کوشش ناکام شو بیا په دغه صورت کې ورته اضطرار ویلی شو. (۱)

**حضرت علامه مفتي رشیداحمد** رَحِمَهُ اللهُ لیکلي دي، پاسپورټ، پیژند پاڼه، لوټ، سکه، او تصویر لرونکی ټیکټ دا د ضرورت شیان دي ددې په ساتلو کې څه حرج نشته.(۲)

**علامه مفتي غلام الرحمن صاحب مدظله** لیکلي دي چې د حکومتي یا غیرحکومتي اسنادولپاره جوړیدونکي تصویرونه علماء کرامو د (الضرورات تبیح المحضورات) تر قاعدې لاندې راوستلي دي. (۳)

## صرف د مخ یا د پورته نیم بدن تصویر

څرنګه چې د پاسپورټ وغیره اسنادولپاره کوم تصویرونه استعمالیږي چې په انګریزي کې ورته هاف ټون یا بسټ وایي ددې متعلق تحقیق دادی چې ددې جوړول اخیستل او استعمالول ټول

۱: (تصویر کې شرعي احکام ص ۸۱) (کفایت المفتي ج ۹ ص ۲۴۷)
۲: (احسن الفتاوی ج۸ ص ۴۳۸)
۳: (فتاوي عثمانیه ج ۱۰ ص ۳۴۲)

ناجائز دي، بغير د هغه خاص صورتونو څخه چې د هغې استثناء په احاديثو کې راغلی ده، ددې تفصيل او دلائل لاندې ذکر ؤو.

په معاني الآثار طحاوي کې د حضرت ابوهريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څخه روايت دی الصورة الرأس، فکُل شئ ليس له راس فليس بصورة. (۱)

**ترجمه:** تصوير د سر نوم دی، په کوم شي کې چې سر نه وي هغه تصوير نه دی،

او د شيخ علي متقي هندي رَحِمَهُ اللَّهُ مشهور کتاب کنزالعمال کې د معجم اسماعيل په حواله د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا الفاظ روايت کړي دي الصورة الراس، فأذا قطع الراس فلا صورة. (۲)

**ترجمه:** تصوير د سر نوم دی کله چې سر قطع شو تصوير پاتې نه شو.

علامه زبيدي رَحِمَهُ اللَّهُ د احياء العلوم په شرح کې د سند سره د حضرت عکرمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ همدغه قول رانقل کړی دی، حدثنا احمد بن الحجاج قال قلت لأبي عبد الله اليس الصورة ذايد او رجل؟ فقال عکُرمة کُل شئ له راس فهو صورة. (۳)

**ترجمه:** احمد بن الحجاج فرمائي چې ما ابوعبدالله ته وويل چې آيا

---

۱: (معاني الآثار ج۲ ص ۳۶۶)
۲: (کنزالعمال ص ۴۰)
۳: (اتحاف السادة ج۷ ص ۵۹)

تصویرهغه نه وي ، چې په هغې کې لاس او پښې وي؟ ده وؤیل چې حضرت عکرمه رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمایلي دي په کوم تصویر کې چې سر موجود ؤو هغه تصویر دی.

امام الحدیث والفقه حضرت خطابي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي؛ المراد من الصورة التي فيها الروح مما لا يقطع رأسه او يمتهن . (۱)

**ترجمه:** د ممنوع تصویر څخه مراد د هغه شیانو تصویر دی چې په هغه کې روح وي چې د هغه سر نوي قطع شوی اویا د پایمال کولو لپاره او ذلیل کولو په توګه استعمال نه شي،

او په بدائع الصنائع کې راځي چې، وان لم تكُن مقطوعة الراس فتكُره الصلاة .(۲)

**ترجمه:** که سریې نه وؤ قطع شوی په دې سره لمونځ کول مکروه دي او حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ په فتح الباري کې فرمایلي دي چې نقل الرافعي عن الجمهور ان الصورة اذا قطع راسها ارتفع المانع .(۳)

**ترجمه:** رافعي د جمهورو څخه نقل کړی دي چې د تصویر چې کله سر قطع شي نو مانع ختم شو ، يعنې ممانعت پاتې نه شو ، او په

---

۱ : (عمدة القاري ج ۱۰ ص ۳۰۷)
۲ : (بدائع الصنائع ج۱ ص ۱۱۵)
۳ : (فتح الباري ج ۱۰ص ۳۲۲)

بعضې فتاواؤ کې په حواله د حاشیه رملي دا الفاظ ذکر شوي دي.

و يحرم عليه ان يصور وجه الانسان بلا بدن . (١)

**ترجمه:** حرام دی چې څوک د انسان د مخ تصویر جوړ کړی د بدن څخه بغیر یعنې فقط د بدن تصویر د سر څخه بغیر کې څوڅه حرج نشته. (٢)

## د تصویر د حرمت څخه منکر فاسق دی

څوک چې د تصویر د حرمت څخه انکار وکړي هغه فاسق دي، ده ته کافر نه شې ویلئ، ځکه چې کافر کیږي هغه وخت کې چې قطعي حرامو ته حلال ووائي.

كما في العالمكيرية قال: انما يكفر اذا كانت الحرمة ثابتة بدليل مقطوع به اما اذا كانت باخبار الاحاد لا يكفر كذا في الخلاصة وفي ثبوت تواتره او الاجماع علي حرمته تامل وان ثبت الاجماع علي حرمة ما له ظل ولكن لا يكفر منكر كل اجماع. (٣)

والتفصيل في حاشية نور الانوار تحت قوله فيكفر جاحده . (٤)

---

١: (تصوير كي شرعي احكام ص ٨٠)
٢: ( كفايت المفتي ج ٩ ص ٢٤٧ )
٣: (فتاوى هنديه ج٣ ص ١٢٤)
٤: (بحث الاجماع ص ٢٢٢، امداد الاحكام ج٤ ص ٢٧٣)

## د ضرورت تعریف

اکثرحضرات وروڼه چې په کوم منکر کار کې د خپل عادت څخه مجبور وي نو دوی د ځان لپاره ډیر دلائل وائي لکه دا مشهور دلیل شو **الضرورات تبيح المحضورات** بالخصوص په نن صبا وخت کې چې د انټرنیټ او ویډیو، تصویر اخیستل ډیر عام شوي دي نو دغه دلیل هم ورسره عام شوي دي، سره له دې چې دغه قاعده په یوه بله قاعده چې

**الضرورة تقدر بقدرها** ده مقیده ده لهذا د ضرورت پیژندل ضروري دي فقهاؤ د ضرورت تعریف داسې کړی دی.

قال العلامة الحموي رَحِمَهُ ٱللَّهُ تعالى فالضرورة بلوغه حدا ان لم يتناول الممنوع هلكُ او قارب الهلاكُ وهذا يبيح تناول الحرام، والحاجة كُالجائع لو لم يجد ما يأكُله لم يهلكُ غيرا نه يكُون في جهده ومشقة وهذا لا يبيح الحرام ويبيح الفطر في الصوم، والمنفعة كُالذي يشتهي خبزالبر ولحم الغنم والطعام الدسم، والزينة كُالمشتهي بحلوى والسكُر، والفضول التوسع بأكُل الحرام والشبهة. [1]

بعضې شیان دضرورت په وجه جائز او روا بلکل کیږي، علامه حموي رَحِمَهُ ٱللَّهُ د ضرورت پینځه درجې ذکر کړیدي او هم یې د هرې درجې تعریف او حکم بیان کړیدی.

---

۱: (شرح الحموي علي الاشباه ج۱ ص ۲۵۲)

[۱] **ضرورت**: بعضې ضرورت داسې حد ته ورسيږي چې که ممنوع شي استعمال نه کړي د هلاکت خطر وي، لکه يو سړی چې د لوږې له وجې داسې حد ته ورسيږي که چيرته د خنزير غوښه ونه خوري مړ کيږي، يا د اوبو تنده داسې حد ته ورسيږي که شراب ونه څکي مړکيږي، دې حالت ته حالت اضطرار وائي په دې حالت کې بقدر ضرورت د خنزير د غوښې خوړلو او د شرابو څکلو رخصت دی، ددې ګناه نشته البته بيا هم حلال نه دي.

[۲] **حاجت**: ضرورت داسې حد ته رسيدل چې د مرګ خطر نوي ليکن د تکليف او مشقت خطر وي.

[۳] **منفعت**: محض فائده حاصلول لکه ښه خوراکونه کول وغيره.

[۴] **زينت**: فقط تلذذ او خوند اخيستل لکه د يو خواګه شي خوړل.

[۵] **فضول**: د حرام او مشتبه شيانو استعمال.

**حکم**: د آخري پينځم صورت حکم ظاهر دی چې حرام دی ليکن د دوهم دريم، څلورم په دې درې صورتونو کې هم د حرامو ارتکاب حرام او ناجائز دي. ([۱])

**علامه جلال الدين سيوطي** رَحِمَهُ ٱللَّهُ **او ابن نجيم** رَحِمَهُ ٱللَّهُ ، **او زرکشي رحمهم الله** دوی درې واړو حضراتو د ضرورت تعريف داسې بيان کړی دی

۱: (ډيجيټل تصوير کې حرمت ص ۱۵۰)

{فقيل في تعريف الضرورة انها حالت من الخطر تطرا علي الانسان يخاف معها فوت شئ من مصالح التي لا بد منها في قيام مصالح الدين والدنيا. بحيث لا تندفع هذه الضرورة الا بارتكاب المحرم او بترك الواجب}(١)

**ترجمه:** ضرورت هغه خطرناک حالت دی چې په انسان باندې راځي چې په دې حالت کې د ضروري مصالحو د مينځه تللو ويره وي، هغه مصالح که ديني وي او که دنيوي وي ، دا په هغه صورت کې چې دا ضرورت بغير د ارتکاب د حرامو يا د واجبو پريښودلو څخه بغير نه ترسره کيږي.

**خلاصه د کلام داده** چې که چيرته په يوه وجه د وجوهو څخه دا ضرورت په يوه بله وجه تر سره کيده نو بيا ارتکاب د حرامو حرام دی.

## د ضرورت په وخت تصوير مباح دی

**سوال** : ماتقولون في تصوير فوتوغرافي ؟هل هو جائز ام لا ؟ ان قلتم بالمنع فما تقولون عند ضرورة التصوير على قاعدة الحكومة الانجليزية لنحو السفر البلاد ونحوه؟.

**ترجمه:** تاسو د فوټوګرافي تصويرونو اخيستلو متعلق څه فرمايئ جائز دي اوکنه ،اوکه جائز نه وي د انګريزي قوانينو د لحاظ ساتلو

١: (الاشباه والنظائر ص ٩١-٨٨، المنثور ص٢٥)

لپاره په پاسپورټ کې ضروري دي د دې متعلق څه حکم دی ؟

المستفتي : حاجي ګل محمد منګوري

۱۸ ذی الحجه ۱۳۵۷هق ۲۷ جنوري ۱۹۴۰ ء

**الجواب** : التصوير لا يجوز مطلقا لا بالقلم ولا غيره، ولكن عند شدة الضرورة جائز لان الضروراة تبيح المحظورات قاعده الشرعية مسلمة عند الفقهاء .

**ترجمه:** تصوير مطلقا ناجائز دی هغه که په قلم سره وي او که په کومه بله طريقه سره وي ،ليکن د سخت ضرورت يا د قانوني مجبوريت په وخت کې جائز دی ځکه چې د شريعت يوه مسلمه قاعده ده - الضرورات تبيح المحظورات - حبيب المرسلين عفی عنه نائب مفتي مدرسه امينيه دهلي - الجواب صحيح محمد کفايت الله کان الله له . (۱)

## ډيجيټل يا د کامرې تصوير څه حکم لري

په نن صبا دور کې تصوير د کثرت استعمال له وجې په ذهنونو کې ددې ګناه دومره بې پروائي پيدا کړې ده، بالخصوص الکټرونيکي وسائلو لکه موبايل، کمپيوټر، تلويزون، او نورو مختلفو سکرينونو په دومره لوړه پيمانه تصوير عام کړی دی شايد چې ډير

۱: (کفايت المفتي ج ۹ ص ۲۵۴)

کم خلک به تري ساتل شوي وي، په دې وسائلو د ښکاريدونکو تصويرونو په حقله د جامعې عثماني فقهي مجلس، د ساينسي، تکنيکي او فقهي تحقيق څخه وروسته برقي تصويرونه دنورو په شان حرام وبلل. (۱)

د کامرې دننه چې کوم ګونګی مارغه ناست دی دا هغه مشين دی چې هغه د انسان تصوير محفوظ کوي ،کوم کار چې د مصور قلم يا برش کوي هماغه کار دا مشين ډېر په سهولت او آسانۍ سره کوي،او دا مشين هم انسان استعمالوي دامنطق خو کم از کم زما په ذهن کې نه راځي چې کوم کار سړی په لاس يا برش سره کوي نو هغه حرام دی ،او که هغه کار په مشين سره وکړل شي نو بيا حلال شي ! الغرض ،تاسو دلاس جوړ شوی او دمشين په واسطه اخيستل شوی تصوير په مينځ کې چې کوم فرق کوی،دا صرف د ذريعې او واسطې فرق دی،د نتيجې په اعتبار سره دواړه يو دي،او په حديث نبوي کې (المصورون اشد عذابا يوم القيامة ) که په لاس سره جوړ کړل شوی داخل دی نو دمشين په ذريعه اخيستل شوی تصوير هم ترې خارج نه دی . (۲)

---

۱: (ماهنامه العصر ۲۰۰۹ فقهي مجلس ص ۳۵/۳۴)( فتاوی عثمانيه ج ۱۰ص ۳۴۲)
۲: (تفاوی يوسفيه / آپ کی مسائل ج ۸ ص ۴۰۳ )

## د تصویرونو جوړولو ویستلو شغل حرام دی

**پوښتنه** : په موجوده زمانه کې د مشین یا کامرې په واسطه تصویر اخیستل او دا شغل اختیارول جائز دی اوکنه، او دغه طریقه د نفقې ګټلو لپاره غوره کول جائزه ده کنه ؟ الجمعه ۱۸ جون ۱۹۲۷ ء

**جواب** : د کامرې په ذریعه د ساه لرونکي تصویرونه جوړول او دا کسب اختیارول ناجائز دی ځکه چې د فوټوګرافۍ تصویر هم تصویر دی بلکه د أعلی درجې کامل تصویر دی ځکه چې په دې باندې د تصویر احکام جاري کیږي، محمد کفایت الله کان الله له.(1)

## ویډیو جوړول څه حکم لري

**سوال:** نن صبا په اکثره مناسباتو او مجالسو کې د ویډیو جوړولو لپاره خاص انتظام کیږي، همدارنګه دیادګار ساتلو لپاره شخصي ویډیوګانې جوړول کیږي، آیاویډیو جوړول د تصویر په حکم کې راځي او کنه.؟ بینوا توجروا

**الجواب وبالله التوفیق:** د ویډیو کامرې په ذریعه چې کوم سبت یا ریکارډ کیږې دا په اصل کې مسلسل تصویرونه دي چې په سکرین یا شیشه باندې ښکاریږي، ددې وجې څخه دا هم د تصویر په حکم

---

۱ : (کفایت المفتي ج ۹ ص ۲۵۴)

کــې داخلــه ده، او د تصــویر حرمــت ممانعــت داحــادیثو نبــوي ﷺ څخــه اود فقهــاء کرامــو د تصــریحاتو څخــه واضــح دی، ددې وجې څخه په ودونو، جلسو، مجالسو، وغیره مناسباتو کې د ویــډیو کــامرې پــه واســطه د نارینــاؤ او زنانــهؤ سبت او ریکــارډ ممنوع او حرام دي، ددې وجې څخه ځان ساتل ترې ضروري دي.

والدیل علي ذالكُ : عن عبدالله بن مسعود رضي الله عنه یقول قال رسول الله ﷺ اشدالناس عذابا یوم القیامة المصورون. [1]

**ترجمه:** حضرت عبد الله ابـن مسـعود رضي الله عنه فرمـایي چې نبي کـریم ﷺ وفرمایـل چې د قیامـت پـه ورځ بـه د ټولـو څخـه سـخت عذاب د تصویر جوړونکو وي.[2]

## تصویر او ویډیو ته د کتلو حکم

د کومــو تصــویرونو او ویــډیوګانو جــوړول او ســاتل چــې حــرام او ناجـائز دي، همدارنګـه د هغـوی قصـدا لیـدل اوکتـل هـم حـرام دي، ځکه چې فقهي قاعده ده چې **لأن الوسیلة الي الحرام حرام**، .[3]

البته که بغیر د قصد څخه په نظر راغلل څه حرج نشته د دې دلیـل

---

۱: (صحیح البخاري ج۲ ص ۲۰۱)
۲: (فتاوی عثمانیه ج ۱۰ ص ۳۵۱) (فتاوی یوسفیه / آپ کی مسائل ج ۸ ص ۴۰۳)
۳: (عون المعبود شرح ابي داود ج۹ ص ۲۲۴)

هم دا قاعده کلیه ده. یغتفر في التوابع ما لا یغتفر في غیرها .[۱]

**حضرت علامه مولانا مفتي محمد شفیع** رَحِمَهُ اللّٰهُ **او فقیه العصر علامه مفتي رشید احمد صاحب** رَحِمَهُ اللّٰهُ لیکلي دي فرمائي چي د کومو تصویرونو جوړول او په کورکې کیښودل چې حرام دي ، د هغوی په قصد او اراده سره لیدل کتل هم حرام دي، البته که چیرته طبعا بلا قصده په نظر راغلل په دې کې څه حرج نشته، لکه اخبار یا مصور کتاب شو په دیکې مقصود د مضمون لوستل وي، خو بلا اراده تصویر هم مخې ته راځي په دیکې څه حرج نشته.

وهذا کُله مصرح في مذهب المالکیة ومؤید بقواعد مذهبنا ونصه عن المالکیة ما ذکُره العلامة الدردیر في شرحه علي مختصر الخلیل حیث قال یحرم تصویر حیوان عاقل او غیره اذا کان کامل الاعضاء اذا کان یدوم وکذا ان لم یدم علي الراجح کتصویره قشر بطیخ ویحرم النظر الیه اذا النظر الي المحرم لحرام .[۲]

**مسئله**: ددې بیان څخه دا معلومه شوه چې د موبایل ، او سنیما ، تلویزون، د فلمونو ویډیوګانو لیدل او کتل که د نورو فواحشو خرابیو څخه قطع نظر هم کړو ، ددوی د ممانعت لپاره دا خبره هم کافي ده چې په دې کې تصویرونه ښودل کیږي او تصویر ته کتل

---

۱ : (شرح مجله ماده ۴ ج۱ ص ۱۳۱ ، فتاوي عثمانیه ج ۱۰ ص ۳۴۴)

۲ : (بلوغ القصد والمرام ج۸ ص ۱۹ ، تصویر کي شرعي حیثیت ص ۸۹، احسن الفتاوی ج۸ ص ۴۳۷)

ناجائز دي، او که په موجوده حالاتو لګ نظر واچو نو معلومیږي چې په دیکې د حد څخه زیات منکرات او محرمات پخپله په عمل کې راځي، او د ډیرو ګناهونو لپاره لار هواروي او د ارتکاب سبب جوړیږي، ددې وجې څخه ددې لیدل او کتل او هم یې بل چا ته ښودل او لیږل ناجائز دي.

## د ویډیو ګیم شرعي حکم

**پوښتنه :** ویډیو ګیم (لوبه) چې د غربي ملکونو څخه وروسته اوس زمونږ په ملک کې هم رواج شوي ده،ددې شوقیان دلته یوه یا دوې روپۍ ورکړي خپل شوق پرې پوره کړي،خو په دې کې هیڅ قسم شرط نه وي،او نه دکوم قسم انعام طمعه ورکول کیږي،بلکې دا لوبه د نورو امورو څخه علاوه په نشانه بازۍ وغیره باندې مشتمله وي،ددې شرعي حیثیت څه دی؟

**جواب**: د کتونکو په مشاهدې سره چې څومره د ویډیو ګیم معلومات وشو او دا حقیقت معلوم شو،دا لوبه د یو څو وجوهاتو له مخې شرعا جائزه نه ده-

**اول:** په دې لوبه کې دیني او جسماني هیڅ فائده نه حاصلیږي، کومه لوبه چې ددې دواړو فائدو څخه خالي وي هغه جائزه نه ده-

**دوهم:** په دې کې وخت او مال ضائع کیږي، او د الله تعالی د ذکر څخه غافلونکي ده-

**دريم:** د ټولونه سخت نقصان دادی چې ددې لوبې له عادت کېدو څخه وروسته يې بيا پرېښودل سخت کار دی-

**څلورم:** ځینې لوبې (ګېمونه) په تصویرونو باندې مشتملې وي چې هغه شرعا جائزې نه دي.

**پنځم:** په دې لوبې سره اګرچې ماشومانو ته خوند او دزړه سکون حاصلیږي، خو دناجائزو شیانو څخه خوند اخیستل هم حرام دی، بلکې ځینو علماؤ تر کفر پورې هم لیکلی دي. (۱)

## د عالم لپاره تصوير اخيستل انتهائي شنيع كاردی

**پوښتنه:** که په دې زمانه کې د تصویر اخیستلو د جواز استنباط شوی وي نو په دلائلو سره يې واضح کړئ، که نوي شوی بیا ددې خبرې وضاحت وکړئ چې آیا ددې کار په کولو سره د کوم عالم، مفتي، او عامي څه توپير شته او کنه.؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تصوير اخيستل په اجماع دامت سره حرام دي، د عوامو په پرتله د عالم يا مفتي لپاره د تصوير اخيستل د څو وجوهاتو له مخې ډير شنيع او قبيح کار دی.

---

۱: (فتاوی یوسفیه، آپ کی مسائل ج ۸ ص ۳۴۴)

**اول**: په اهل العلم والفهم او مقربينو باندې د الله تعالى ګرفت ډير سخت وي.

**دوهم** : د علماؤ د ګناه له وجې عوام په ګناه باندې ډير جرأت کوي.

**دريم**: د علماؤ ددې کار په کولو سره عوام دا ګناه جائزه بولي . (١)

## د تصوير متعلق د يو سوال جواب

**سوال** : بسم الله الرحمن الرحيم ، حضرت مولانا الجليل وقدوة العلماء النبيل مولوي محمد كفايت الله دام فيوضه السلام عليكم ورحمة الله وبركاته اني رايت في الاخبار الشائع من بلد مدراس المسمى ببدرالاسلام الصورتين النصفين مرقومة من الفوتو غراف وجد اسمين تحت هذين التصويرين احدهما اسمكُ الشريف وثانيهما اسم مولانا احمد سعيد دام مجده ومع ذالكُ قد حرر جامع الاخبار فوق هذين التصويرين على سبيل الافتاء قصد الجامع وايرادهما فيه فظاهر ومذهبه عندالناس باهر فالامل منكم بهذا التستير طلب الجواب متعلقا عن هذا التصوير ان هذا الفوتو غراف هل يوخذ منكم ان تكون راضيا عليه ام لا وهل يجوز نصف صورة الاعلى من الفوتو غراف ام لا ؟ بينوا توجروا .

**المستفتى** : (مولوی عبد العلی لاہور ۱۰ رجب ۱۳۵۳ ھ ق ۲۰ اکتوبر ۱۹۳۴ء)

**ترجمه** : حضرت مولانا محمد كفايت الله صاحب السلام عليكم ورحمة الله وبركاته ، د بدرالاسلام په نوم يو اخبار د مدراس ولايت څخه نشريږي ما په هغه کې دوه نصف تصويرونه وليدل چې د يو

---

١ : (احسن الفتاوى ج٨ ص ١٩١)

تصویر لاندې ستاسو نوم لیکل شوی وو او د بل تصویر لاندې د مولانا احمد سعید صاحب نوم لیکل شوی وو، ددې سره یوه یادونه هم شوي وه چې د هغې څخه دامعلومیدله چې ددې تصویرونو د خپرولو څخه انځورګر (فوټوګرافر) یا کامره مین د تصویر دجواز استدلال کوي –

دانځورګر (ریمارک) او ددې تصویر دنشر څخه ددوی مطلب او بیا ترخلکو ددې رسول خو ښکاره خبره ده مګر ستاسو څخه دا پوښتنه ده چې آیا دا تصویر ستاسو په خوښه اخیستل شوی ؟ او آیا دپورته نیمې حصې تصویر اخیستل جائز دی ؟

**جواب** :التصویر(بمعنی المفعول لا المعنی المصدري ) والصورة والتمثال کُله بمعنی واحد والمراد مایقع به المعرفة وهوالوجه والراس ففعل الصورة هو رسم الوجه والراس و یتعلق به حکُم المنع والتحریم وتجویز بعض العلماء نصف الصورة لایساعده دلیل یعتمد علیه و انا لم نحکُم بجواز اتخاذ الصورة مطلقاً لا تامة ولا منصفة اما اشاعة بعض الجرائد تمثال فوتوغراف بصورنا فنحن لاندري من اخذها و این اخذها و متی اخذها ولا یخفی ان اخذ رسم الفوتوغراف لا یحتاج الی علم صاحب الصورة فان الاخذ یتمکُن من اخذها مع غفلة صاحب الصورة کُذالكُ اخذ مثالنا من اخذها.

**ترجمه** : تصویر په معنی د مصور ،صورت ،شبیه ،او مجسمه ، ټوله یوه معنی لري او دهغه څخه مراد دومره حصه ده چې معرفت

او پیژندګلوي پرې حاصلیږي چې هغه مخ او سر دي ،او د تصویر اخیستلو څخه مراد د مخ او سر نقشه اخیستل دي د حرمت او ممانعت حکم د همدې سره تعلق لري ،او بعضې علماء کرامو چې نیم تصویر جائز بللی د دوي سره کوم مضبوط او قابل اعتماد دلیل نشته ،مطلقا تصویر اخیستل هغه که نیم وي او که پوره وي زمونږ په نزد حرام دی ،بعضو رسائلو چې زما تصویر نشر کړی زه ترې خبر نیم چې زما تصویر انځورګر( کامره مین ) کله چیرته او څه وخت اخیستی دی ،او سره له دې چې د تصویر اخیستونکي (انځورګر) لپاره د صاحب تصویر علم ضرور نه دی دیو چا تصویر دهغه په بې خبرۍ کې هم اخیستل کیږي ،او زما تصویر چې هم چا اخیستی وي زه پرې خبر نیم . محمد کفیت الله کان الله له. (۱)

## د تصویر اخیستلو لپاره د چا عمل حجت نه دی

**سوال**: په دور حاضر کې د اخبارونو مطالعه کول ضروري دي، په ټولو اخبارونو کې د تصویرونو نشرول یو معمول جوړ شوی دی، د شودو په ډبو باندې ، د بسکټو په ډبو باندې ، او د دوایئ په پاکټونو باندې تصویرونه موجود دي ،ددې نه علاوه د پیژند پاڼې او پاسپورټ وغیره لپاره د تصویر اخیستلو ضرورت دی ، ستاسو

۱: ( کفایت المفتي ج۹ ص ۲۴۴ )

به ډیره مهرباني وي که په دې سلسله کې تاسو زمونږ راهنمایي وکړه چې په داسې حالاتو کې خپل کورونه د تصویرونو څخه څنګه پاک کړو ؟

ددې څخه علاوه په دې سلسله کې د غټو غټو علماوو تصویرونه هم موجود دي!

**جواب :** تصویر جوړول او اخیستل ګناه ده ، عن ابن عمر اخبره ان رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال: (الذین یصنعون الصور یعذبون یوم القیامة یقال لهم: اخیوا ما خلقتم). [1]

خو که د قانوني مجبورئ په وجه داسې وکړل شي؛ نو امید دی چې پوښتنه به نه کیږي (الضرورات تبیح المحظورات بقدر الضرورة).[2]

اخبارونه دې په کور کې بند کیښودل شي، هرچه د دین د بزرګانو خبره ده اول خو دوی په خپله خوښه او مرضۍ سره جوړ او اخیستي نه دي بالفرض که اخیستي یې وي نو د چا عمل حجت نه دی ، حجت د الله او د رسول ارشادات دي . [3]

---

۱: رواه مسلم.
۲: الاشباه والنظائر.
۳: (فتاوی یوسفیه اپ کی مسائل ج۸ ص ۳۸۴)

## تصویر چې هر څوک اوباسي جائز نه دی

**سوال**: په اسلامي مذهب کې تصویر اخیستل جائز دي او که جائز نه وي نو مشهور علماء دین لکه مولانا شبلي، مولانا حالی، ولې خپل تصویرونه اخیستي او ستاسو تصویرونه هم موجود دي. ؟

المستفتي محمد فضل الله خان صاحب (بنګلور کینټ)

۱۲ ربیع الاول ۱۳۵۶ هـ ج/ ۲۳ مئ ۱۹۳۷ ء

**جواب**: تصویر اخیستل جوړول نا جائزدي، کومو علماء کرامو چې تصویرونه پخپله قصدا اخیستي وي د هغوی په نزد به مباح وي مګر زه یې مباح نه ګڼم او نه ما کله خپل تصویر اخیستی ما په بعضو اخبارونو کې خپل تصویر لیدلی دی مګر زه خبر نه یم چې زما تصویر کله او په کوم ځای کې اخیستل شوی دی یو چا زما په بې خبرئ کې اخیستی دی. محمد کفایت الله (دهلي) [۱]

## تصویر که هر قسم جوړ شي ناجائز دی

**سوال**: په نن صبا زمانه کې چې کوم تصویرونه اخیستل کیږي په دې کې دائیني په شان عکس راځي البته په مستقله او غیر مستقله توګه باندې د قائمیدو فرق دی نو پوښتنه داده چې د شدید ضرورت څخه بغیر مثلا د پاسپورټ وغیره لپاره په نوی

۱: (کفایت المفتی ج ۹ ص ۲۵۰)

طريقه سره (جديدو آلاتو ) دزنده سري د مکمل قد تصوير اخيستل شرعا جائز دی او کنه ،که جائز وي نو ولې په دې کې څه مصلحت دی ، او که ناجائز وي نو ددارنګه تصويرونو اخيستلو متعلق د شريعت څه حکم دی او داسې کسانو پسې لمونځ کول څنګه دی؟ او آيا داخلک د فاسقانو په حکم کې داخل دي او دارنګه تصويرونه د ځان سره ساتل صحيح دي او کنه ؟

(المستفتي :حاجي داود هاشم صاحب رنګون
۲۷ رجب ۱۳۵۶هق ۱۳ اکتوبر ۱۹۳۷ ء

**جواب :** د تصوير جوړولو چې کوم ممانعت راغلی دی هغه که په لاس وي او که په کامره وي ممانعت د دواړو لپاره دی دزنده سري چې هرقسم تصوير واخيستل شي دتصوير حکم لري داپه کور کې ساتل منع دي ، دتصوير څخه مراد مخ دی يعنې د سر تصوير که نيم بدن وي او که مکمل وي ،که سر او مخ نه وي نو بيا تصوير مباح دی، دمصر بعضې علماءکرام تصوير مباح ګڼي بعضې د نيم بدن تصوير مباح ګڼي زما په خيال دا دواړه اقوال ناسم دي او بې دليله دي ،د ضروري سفر په خاطر د پاسپورټ لپاره تصوير اخيستل مباح ګڼل شوی دي. محمد کفايت الله کان الله له (دهلي ).[1]

---

۱ : (کفايت المفتي ج ۹ ص ۲۵۰ )

## تصویر اخیستونکي پسې د اقتدا حکم

**پوښتنه**: بعضې خلک تصویرونه پخپله یا د بل چا څخه اخلي شرعا د داسې خلکو په اقتدا کې د لمونځ کولو څه حکم دی.؟

**جواب**: په دې باره کې حضرت مولانا ظفر احمد عثماني رَحِمَهُ اللَّهُ لیکلي دي فرمائي چې د تصویر یا عکس حرمت په متواترو احادیثو سره ثابت دي، او د امت په دې باندې اجماع ده بعضې خلک د تصویر په لاس جوړولو او جدیدو کامرو کې فرق کوي دا قطعا صحیح نه ده او غلطه خبره ده ځکه چې تصویر اخیستل حرام دي، ددې چې کوم قسم نوی صورت ایجادیږي حرام دی.

**د نوم او طرزالعمل په بدلولو سره حرمت نه زائل کیږي** ځکه چې د تصویر د حرمت سبب دادی چې تصویر د شرک بنیاد دي، هغه دلته هم موجود دي، په دې خبره هر څوک ښه پوهیږي چې د تصویر اخیستلو څخه اوس هم هغه مقصد دی کوم مقصد چې مخکې ؤو، او په دیکې د تصویر اخیستونکي داسې دخل دی څنګه به چې پخوا دلاس جوړونکي ؤو، نو دواړه قسمونه په حرمت کې برابر دي، ددې وجې څخه پخپله تصویر اخیستونکي یاد بل چا څخه تصویر اخیستونکي دواړه مرتکب د حرامو او مرتکب د ګناه کبیره دي، او د بعضې احادیثو له مخې ملعون او فاسقان دي، د داسې

خلکو په اقتدا کې لمونځ کول مکروه تحريمي دي، او دا قسم تصويرونه په کور کې يا ځان سره ساتل ګناه او حرام دي.(۱)

**تصديق** : علامه مولانا محمد اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللَّهُ هذا هو الحق وماذا بعد الحق الا الضلال. کُتبه اشرف علي ۱۳۵۶هجري.

**او حضرت علامه مفتي رشيد احمد** رَحِمَهُ اللَّهُ د **خلاصة الاحکام** تر عنوان لاندې ليکلي دي فرمايي چې تصوير جوړونکی اخيستونکي او فوټوګراف يا په دې کار کې هر قسم شرکت کونکی اشخاص فاسقان دي، ددوی اذان، اقامت، امامت، ناجائز دی، او شهادت يې مردود دی، همدارنګه د تصوير اخيستل خرڅول حرام دي، ددې د کاروبار پيسې حرامې او د نفع اخيستلو جوګه ندي.(۲)

## د اخبار د تصويرونو حکم

**پوښتنه** : په اخباراتو کې چې کوم تصويرونه وي او بيا دغه اخبار په کور کې ساتل کيږي، دا سې تصويرونه په کور کې ساتل څنګه دي؟

**جواب** : دا تصويرونه قصدا په کور کې ساتل حرام دي، او که بلا قصده په کوم اخبار کې يا کتاب کې پاتې شي حرام نه دی، مګر مکروه دي. محمد کفايت الله کان الله له . (۳)

۱ : (امداد الاحکام ج۴ص ۳۸۴)
۲ : (احسن الفتاوی ج۸ ص ۴۳۷) فتاوی يوسفيه /آپ کی مسائل ج ۸ ص ۳۳۸)
۳ : ( کفايت المفتي ج ۹ ص ۲۴۸ )

## د ماشومانو د مشغولتيا لپاره مصنوعي مجسمې (نانځکې)څه حکم لري

**سوال** : د ماشومانو د لوبو او مشغولتيا لپاره د مصنوعي مجسمو (نانځکو ) اخيستل څه حکم لري چې په هغې کې د انسان، آس، وغيره حيواناتو او ځناورو مجسمې هم وي؛ بينوا توجروا.

**الجواب : باسم ملهم الصواب** : ماشومانو لپاره د لوبو او مشغولتيا شيان اخيستل جائز دي، ليکن د ژوندي ذي روحه حيواناتو لکه انسان، آس، سپی، او داسې نورو مجسمو اخيستل جائز ندي.والله سبحانه تعالی اعلم.(١)

**حضرت مولانا مفتي محمد شفيع** رَحِمَهُ اللَّهُ په دې مسئله کې داسې ليکلي دي، د ماشومانو جينکو لپاره د نانځکو جوړولو او اخيستلو په مسئله کې اختلاف دی، بعضې حضراتو د عام تصوير په څير مطلقا منع کړي دي،.

او بعضې حضراتو پکې دا تفصيل کړی دی، چې وړو ماشومانو جينکو ته په دې شرط جائز دي چې مکمل تصوير به نوي، او د بالغو جينکو لپاره مطلقا ناجائز دي، او همدارنګه په کوم کې چې تصوير مکمل وي بيا مطلقا ناجائز دي.

---

١: [احسن الفتاوی ج٨ ص ٢٠١]

كما صرح به في بلوغ القصد والمرام بكونهما روايتين في مذهب مالك وكون الثاني معتمدا عند المالكية وفيه عن الزرقاني فيجوز عملها(يعني اللعب) وبيعها لان في ذالك تدريب طباع النساء من صغرهن على تربية الاولاد. (١)

## د نانځکو ساتلو د روایت جواب

**پوښتنه**: ستاسو سره دلوبو نانځکو(ګوډیانو) د روایت جواب څه دی؟

**جواب**: کومه ګوډۍ ( نانځکه ) چې باقاعده د مجسمې په شکل کې وي ، ددې ساتل او ددې سره لوبې کول جائز نه دي ،د معمولی قسم نانځکې چې هغه ماشومه پخپله جوړوي د هغې اجازت دی ، او د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د نانځکو هم همدا محمل دی،د ځینې حضراتود وینا له مخې چې په هغه وخت کې د تصویر جوړولو ممانعت نه وو شوی بیا وروسته شوی دی. (٢)

## د دین اسلام خپرولو لپاره د اسلام د کوم حکم خلاف ورزي جائزه نده

**فقیه العصر مفتي رشید احمد صاحب** رَحِمَهُ اللهُ لیکلي دي فرمایي چې په دې حقیقت هر څوک ښه پوهیږي چې د دنیوي مصلحت او ګټې لپاره ګناه کول یا کوم فرض او واجب عمل پریښودل جائز نه دي، مثلا یو

١: (تصویر کي شرعي احکام ص ۵۷)/ (فتاوی یوسفیه .اپ کی مسائل ج ۸ ص ۳۹۰)
٢: (فتاوی یوسفیه ،اپ کی مسائل ج ۸ ص ۳۹۲)

څوک د دنیوي ګټې لپاره چا ته دوکه ورکوي، لمونځ نکوي یا جماعت پریږدي، نو ظاهره خبره ده چې دا فسق او حرام دی.

همدارنګه د دیني مصلحت لپاره د کوم معصیت ارتکاب هم حرام دي، د الله تعالی او د الله تعالی د رسول ﷺ اطاعت په ټولو مصالحو باندې مقدم دي، او ام المصالح دی، (یعني د مصالحو مور ده) په دې باندې ټول مصالح قربانیږي، د مثال په توګه یو څوک د سنیما یاد سود په ذریعه د دې لپاره پیسې ګټي چې په دې باندې دیني مدرسې چلوم.

یا د دې لپاره ګډیږي رقص کوي چې خلک را جمع شي او وعظ نصیحت ورته وشي، دا سې کارونه کول ډیره سخته ګناه او انتهائي خطرناکه ګمراهي ده.

البته که کوم کار نه شرعا فرض وي او نه واجب وي بلکه مستحب یا مباح وي دا د کوم دیني مصلحت لپاره پریښودل مثلا لکه عوام د کومې فتنې یا معصیت یا تکلیف څخه د بیچ کولو لپاره پریښودل جائز دي.

څرنګه چې فقهاء کرامو رحمهم الله لیکلي دي فرمایي چې که په تراویحو کې خلک ستړي شول نو د دوی د رعایت لپاره د لمانځه په آخر کې د درود شریف مختصر کول او دعاء پریښودل جائز دي.(۱)

۱: (په حواله د درمختار)

د مصلحت پـه وجـه د مسـتحبو او مبـاحو پـه پريښـودلو کـې هـم دا شرط دی، چې ددې څخه به په قانون شرعي کې تحريـف او پـه ديـن کې مداخلت نوي؛

هو که چيرته د انتظامي امورو متعلق داسې يو قانون جوړ کړل شي نـو مـداخلت فـي الـدين نـدی د مثـال پـه توګـه د مـوټر پـه ښـي طـرف چليدل يا په چپ طرف د چليدولو قانون يا فقـط يـو طرفـه لار تعـين کول يا د ترافيک اړوند نور ضوابط.

يا لکه د کعبة الله تعمير له سره بيا جوړول هم د انتظامي اومـورو د قبيلې څخه دي، شرعا دا ترميم نه فرض ؤو اونه واجب حتی چې دا مستحب ګرځول هم مشـکل دي، ددې وجې څخـه د حطـيم پـه کعبـه شريفه کې داخلول او دروازې لاندې راوړل يادوه دروازې جوړول دا داسې امور دي چې په دې کې د استحباب هم څه وجه نشـتـه صـرف د راحت او آرام لپـاره مصـلحت ؤو چـې دا د امـور انتظاميـه ؤ څخـه دي. هو پـه عبـادت کـې د سـهولت د ذريعـې پـه وجـه ديتـه مسـتحب لغيره ويل کېږي ، علـي سـبيل التنـزل کـه مسـتحب لعينـه هـم ومنـل شـي ، څنګـه چـې د ذکـر شـويو امـورو څخـه امـر اول ظـاهر دي، نـو زيـات نـه زيـات دا خبـره ثـابتيږي چـې نبـي کـريم ﷺ خلـک د فتنې څخه د ساتلو په موخه او د دوی د اسلام د حفاظت لپـاره يـو

مستحب کار پرېښی دی، خودا خبره چیرته هم ثابته نده چې د کوم مصلحت لپاره د فرائضو او واجباتو پرېښودل او ارتکاب د ګناهونو هم جائز دی.

لکه څرنګه چې **حافظ ابن حجر** رَحِمَهُ ٱللَّهُ ددې واقعې **څخه** دا نتیجه اخیستي ده فرمایي؛ و ان الامام یوسوس رعیته بما فیه اصلاحه ولو کان مفضولا مالم یکن محرما. (۱)

**امام بخاري** رَحِمَهُ ٱللَّهُ هم په دې حدیث شریف باندې دا باب قائم کړی دی فرمایي؛ باب من ترکُ بعض الاختیار مخافة ان یقصر فهم بعض الناس فیقعوا فیه اشد منه.

بعضې افضل او مختار کار ددې اندېښنې په وجه پرېښی شي، مګر د حدودالله **څخه** تجاوز او د شرعیت د قانون مخالفت هیڅ کله جائز نه دی،

په دې خبره باندې ده دنبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احادیث، او د قرآن کریم آیتونه، او د صحابه کرامو واقعات د دلیل په توګه وړاندې کړي دي، او په آخر کې لیکي چې ددې قسم په متعددو آیتونو کې په هر حالت کې فرمانبرداره منونکي بنده ګان کامیاب ښودلي دي، اګر که په ظاهره هغوی ناکام هم وي، اصل کامیابي د الله جَلَّجَلَالُهُ

۱: (فتح الباري ج۱ ص ۱۹۹)

رضا حاصلول دي چې هغه صرف د هغه ذات باري تعالى په اطاعت او ترک معصیت باندې حاصلیږي، او که ظاهري کامیابي مقصود وګرځول شي بیا خو معاذالله دا لازمیږي چې ډېر انبیاءکرام علیهم السلام ندی کامیاب شوی ځکه چې دوی ته څه قدرت او حکومت ندی رسیدلی،بلکه د نبی کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قول مبارک دی چې بعضې نبی داسې هم تېر شوی دی چې په هغه باندې صرف یو نفر ایمان راوړی دی، او په بعضو باندې یو نفر هم ایمان ندی راوړی،

او په قرآن کریم کې په څو ځایونو کې تصریح شوي ده چې ډیر انبیاء کرام علیهم السلام قتل شوي دي، نو آیا معاذالله دا ټول ناکام شول؟ هیڅ کله هم نا بس د کامیابۍ معنٰی داده چې دالله تعالی د رضا حاصلولو په خاطر د هغې لپاره په ښودل شویو قواعدو او ضوابطو باندې ثابت قدم اوسیږئ.و فقنا الله الجمیع لما یحب ویرضی وهو العاصم من جمیع الفتن وله الحمد اولا واخرا. (١)

## د تصویر په شکل د بسم الله لیکل ګناه ده

**پوښتنه :** بعضې حضرات بسم الله د مرغه یا د شیر په تصویر کې لیکي دا جائز دي کنه ؟ اوکه ناجائز وي نو د کاتب لپاره څه حکم دی ؟

١ : (احسن الفتاوی ج٦ ص ٨۴)

المستفتي : اميرعلي چترالي متعلم مدرسه امينيه ( دهلي )
۱۵ شوال ۱۳۵۲ هـ ق ۱۹ ستمبر ۱۹۳۲ ء

**جواب**: په کتابت کې د تصويرونو شکل جوړول جائز نه دي او خاصتاد بسم الله شريف چې د قرآن کريم آيت شريف دی دا د تصوير په شکل کې جوړول ګناه او ډېر بد کار دی/محمد کفايت الله کان الله له ( دهلي).([1])

## د ګناه بدوالي له زړونو څخه ووت

کوم خلک چې تلويزون جائز نه ګڼې مګر د ليدو څخه هم نه ترې منع کيږي، يقينا هغوی په دې شيطاني فريب کې مبتلا دي چې د نجات لپاره د منکراتو پرېښودلو ضرورت نشته، بلکه صدقه، خيرات، ورکول هغه که د حرام مال څخه هم وي، او اذکار اوراد، نوافل کول د نجات لپاره کافي دي،

او حال دادی چې د مسلمان ددين لپاره ګناه کول زهر قاتل دی، د بعضې ګناهونو زهر دومره تيز او متعدي دي چې د انسان نيک اعمال هم لوټ کوي، ددې وجې څخه قرآن او حديث چې څومره زور او تاکيد د ګناهونو څخه په ځان ساتلو کړی دی دومره يې پرنفلي عباداتو ندی کړی، دمثال په توګه..

۱: ( کفايت المفتي ج۹ ص ۲۵۱ )

وذروا ظاهر الاثم وباطنه ... الاية ؛

لاتقربوا الزنا .(الاية....لاتقربوا الفواحش (الاية)

وغيرها من آيات كُثيرة كُثيرة اتقوا المحارم . (الحديث)

المهاجر من هجر ما نهى الله عنه . (الحديث)

المهاجر من هجر الخطايا والذنوب. (الحديث)

والمجاهد من جاهد نفسه . (الحديث)

ليس الشديد بالصرعة . (الحديث) ، وغيرها من احاديث كُثيرة شهيرة.

کوم خلک چې د ګناه د پرېښودلو پر ځای په نفلي عباداتو مشغول دي اودغه يې د ځان لپاره د نجات وسيله ګرځولې ده ددا سې انسان مثال دهغه احمق اوکم عقل شخه کم ندی کوم چې د کرېږ او نړيدونکي ودانۍ د بنياد د استحکام پرځای د هغې د ديوالونو په رنګ او روغن کې مصروف وي. (١)

همدغه سوچ او فکر نن صبا د موبايل عاشقان هم لري، بلکه ددې شخه يوقدم وروړاندې دي، هغه داسې چې ويل کيږي مونږ ترې مثبت کار اخلو، داخبره هم تريو حده پورې سمه ده خو د خواصو په حق کې ليکن په عموم کې ددې سوچ او فکر جنازو وتلې ده.

---

١: (احسن الفتاوى ج٨ ص ٢٩۴)

## د تصویر او ویډیو د حرمت په اړه د دارالافتاء جامعة العلوم الاسلامیة علامه بنوري ټاؤن کراچۍ فتوی

**استفتاء : الف :** دمروجه تصویر څه حکم دی، د موبایل کامرې او ډیجیټل کامرې واله ویډیو چې په هغې کې هیڅ قسم ریل نوي بلکه هغه تصویرونه او ویډیوګانې په میموري وغیره کې حفظ کیږي.

**ب :** تصویرونه او ویډیوګانې د موبایل او نورو آلاتو په واسطه نورو خلکو ته لیږل څنګه دي، همدارنګه د مذهبي تقریرونو ویډیوګانو لیږل څنګه دي؟ تاسو د شریعت په رڼا کې کې ددې مسائلو په حقله تفصیلي رهنمائي وفرمایئ . جزاکم الله خیرا ؛

سائل: محمد اصف عمران لاهور

**الجواب : باسمه تعالي؛** واضحه دې وي چې په لاس سره جوړشوی تصویر او په کامره موبایل باندې د ذي روح تصویر اخیستل بلکل یو دي، ځکه چې ددې په مفاسدو او علتونو کې یووالی او اشتراک دی، او دا خبره دې هم واضحه وي چې دیو شي په حلالوالي او حراموالي کې د هغه ذرائعو او آلاتو ته اعتبار نشته، که چیرته یو شی حرام وي نو هغه که په لاس سره جوړ شوی وي او که په جدیدو آلاتو سره که هغه شی حرام وي په اختلاف د آلاتو سره په حکم کې هیڅ فرق نه راځي.

لهذا د موبایل یا هر قسم ډیجیټل کامرې په ذریعه تصویر اخیستل یا ویډیو جوړول، او هغه حفظ کول، د هغې لیدل یا بل چا ته ښودل ناجائز او حرام دي.

ددې تصویرونو او ویډیوګانو د موبایل په ذریعه چا ته لیږل ناجائز او سبب د معصیت دی او ګناه ده، هغه که د اسلامي او مذهبي تقریرونو ویډیوګانې وي یا نورې وي له ټولو څخه اجتناب ضروري دی.

شرح المسلم للنووي رَحِمَهُ اللَّهُ کې راغي چې ؛ قال اصحابنا وغيرهم من العلماء تصوير صورة الحيوان حرام شديد التحريم وهو من الكبائر لأنه متوعد عليه بهذا الوعيد الشديد المذكور في الاحاديث وسواء صنعه بما يمتهن او بغيره فصنعته حرام بكل حال لانه فيه مضاهات لخلق الله تعالى ... ولا فرق في هذا كله بين ما له ظل وما لا ظل له ، هذا تلخيص مذهبنا في المسئلة وبمعناه قال جماهير العلماء من الصحابة والتابعين ومن بعدهم وهو مذهب الثوري ومالكُ وابي حنيفة وغيره. (۱)

فتاوی شامي کې راغي چې ؛ و ظاهرالكلام النووي في شرح مسلم الاجماع على تحريم صورة الحيوان قال : وسواء صنعه لما يمتهن او لغيره فصنعته حرام بكل حال. (۲)

---

۱: (النووی علی صحیح المسلم ج۲ ص ۱۹۹)
۲: (كتاب الصلاة باب ما يفسد الصلاة ج۱ ص ۲۴۷)

الجامع الصحيح للامام البخاري کې راځي چې ؛ عن عبدالله عن نافع ان عبدالله ابن عمر اخبره ان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال ان الذين يصنعون هذه الصور يعذبون يوم القيامة يقال لهم احيوا ما خلقتم. (۱)

**وفيه ايضا** حدثنا ابو ذرعة قال دخلت مع ابي هريرة دارا بالمدينة فراها اعلاها مصورا يصور قال سمعت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقول ومن اظلم ممن ذهب يخلق كُخلقي فليخلقوا حبة واليخلقوا ذرة. الخ (۲)

الدرالمختار کې راځي چې؛ كُل ما ادي الي ما لايجوز لا يجوز. (۳)

شرح المجله لخالد الاتاسي کې راځي چې؛ فكُل شئ لا يجوز فعله لا يجوز طلب ايجاده من الغير سواء كان بالقول او بالفعل بان يكُون واسطة او آلة لا يجاده فكُما يحرم علي الانسان مثلا الظلم ، واخذ الرشوة، وشهادة الزور واليمين الكُاذبة، يحرم ايضا طلبه من غيره بان يامره بذالكُ او يشوقه علي فعله او يكُون آلة او واسطة له. (٤)

تفسير ابن كثير کې راځي چې؛ هذا تاديب ثالث لمن سمع شيئا من الكُلام السئ فقام بذهنه شئ منه وتكُلم به فلا يكُثر منه ولا يشيعه، ويذيعه، فقد قال

---

۱: (كتاب اللباس ، باب عذاب المصورين يوم القيامة ج۲ ص ۸۸۰، قديمي كتب خانه كراچي)
۲: ( كتاب اللباس ، باب نقض الصور، ج۲ ص ۸۸)
۳: (كتاب الحظر والاباحة، فصل في اللباس ج۲ ص ۳۲۰)
۴: (شرح المجله ج۱ ص ۷۸ مطبعه رشيديه)

تعالی:ان الذین یحبون ان تشیع الفاحشة في الذین امنوا لهم عذاب الیم في الدنیا والاخرة.

**وفیه ایضا:** یامر تعالی: عباده المؤمنین بالمعاونة علي فعل الخیرات وهوالبر وترکُ المنکُرات وهو التقوی وینهاهم عن التناصر علي الباطل والتعاون علي المأثم والمحارم . ۲) فقط والله اعلم [۱]

کتبه لا ئق رحیم؛ متخصص في الفقه الاسلامي
جامعه العلوم اسلامیه علامه بنوري ټاون کراچي [۲]

## جهاد او ډیجیټل اجتماعي رسنۍ

د مسلمانانو پـه وړانـدې کفـار پـه دؤو محـاذونو کـې چـې یـو یـې نظـامي او بـل یـې ډیجیټـل ټکنـالوجي ده خـورا پـه ډیـر دقـت او انتهائي کوششونو مصروف دي، خودایومنل شوی حقیقت دی چي داسلام دسر ښیندونکو ځوانانو دنه سترې کیدونکو هلو ځلو پـه نتیجه کې یې په نظامي ډګر کې تاریخواره شکستونه لـه ځانـه سره وړي دي.

هر چې د دوی دوهم محاذ ډیجیټل ټکنالوجي یا لکترونکي وسائل دي په ډیر تاسف سره باید ووایم چې په دې کې کفارو تر ډیره حده

۱: (تفسیر ابن کثیرج۲ ص ۲ سورة المائدة ۲)
۲: (ډیجیټل تصویر کې حرمت علماء امت کی نظر... ص ۹۷)

پـر مختـګ کـړی دی، اسـلامي نـړۍ یـې د فحاشـۍ او عریـانۍ پـه ګناهونو کې بې باکه کړې ده، ځکـه خو پـه دې محـاذ کـې ګټـونکې بلل کیږي.

پـه دې محـاذ کـې د دوی مهمـې او مختلفـې اسـلحې چـې کـار تـرې اخلـي هغـه لکـه، تلـویزون، سـي ډي، د انټرنیـټ پـه مـټ کمپیـوټر، موبایل، او داسې اړونده نورې شبکې دي-

اوس پوښتنه داده چې آیا په دې محاذ کې هم مقابله او جهاد کولې شو او کنه؟ او که په دغه محاذ کې دې لاس تړلي او لاس تـر ځینـې ناست وو.؟

ددې پوښتنو په ځواب کې او ددې مسئلې پـه شرعي حیثیت کې زمونږ لپاره د فقهاؤ او دامت د جمهورو علماؤ رأیـه او نظر کـافي دی، دې مسئلې ته ورته دلائل مخکې په صفحو کې هم تیر شویدي او وروسته به هم راشي، خودلته دومره وضاحت کول غـواړم هغـه داچې الحمد لله دکفري نړۍ پـه مقابلـه کولـو کـې مونږ د مخمصې هغـه حالـت تـه لا نـه یـو رسـیدلي چـې ګـواکې د ویډیو او تصـویر د چلولـو څخـه بغیـر بلـه د مقـابلې لار نلـرو، بلکـه مـونږ نـورې ښـې غښتلې او مؤثرې لارې چارې لرو.

د مثال په توګه تحريري بيانونه او ليکنې، صوتي تقريرونه، او د جهاد له سنګر څخه بغير د ذي روح له تصويرونو ويډيوګانې، او د سنګرونو او اسلحو تصويرونه،د دښمن په مراکزو او موټريزو کاروانونو د انفجاراتو تصويرونه ويډيوګانې وغيره وغيره، دا هغه لارې چارې دي چې مونږ خپل دښمن د خپل قوت او ددوی د تلفاتو څخه باخبره ساتلي شو او هم خپله فکري جګړه پرمخ وړلی شو.

که څه هم چې ددې شيانو به يوه اندازه فائدې او ګټې کړي وي خو ددې ايت شريف مصداق ګرځي چې (**اثمهما اکبر من نفعهما**) يقينا چې د ګټې پر ځای يې اخروي نقصان او ګناه ډېره ده -ددې مسئلې متعلق خبره به وروسته هم راشي، ان شاءالله چې شرح صدر به مو وشي.

## په ويډيو او تلويزون باندې ښه تقريرونه آوريدل

**پوښتنه** : زمونږ شوق دومره زيات شوی دی چې چېرته هم ښه بيان کيږي هلته ځان رسوو ،آن تردې چې په ويډيو کې هم ديو عالم ښه بيان وي نو ورته کېنو آورو يې په خاصه توګه د جمعې په ورځ په تلويزون باندې چې کوم پروګرامونه راځي هغه هم آورو ، خو مونږ ته چا وويل چې دا ناجائز دي ،لهذا تاسو ته درخواست کوم چې آيا دا جائز دي اوکنه.؟

**جواب** : زمونږ په شريعت کې د جاندار (ساه لرونکی) تصوير حرام

دی ،او نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې باندې لعنت ویلی دی ،په تلویزون ، ویډیو ،او فلمونو کې تصویر وي ، کوم شئ چې نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حرام او ملعون وفرمایي د هغه د جواز سوال هم نه پیدا کیږي ،دا سوال بالکل فضول دی ،که څوک د ام الخبائث ( شرابو ) په باره کې ووایي چې دا دنېکو مقاصدو لپاره استعمالیږي نو بالکل فضول خبره ده ،زمونږ په دور کې تلویزون او ویډیو د ام الخبائث درجه لري او دا دبې شمېره خبائثو سرچینه ده . (١)

## د اکابرو علماؤ او مدارسو فتاوې

دموبایل تلویزون،سي ډي،وغیره دجدیدو آلاتو پرمټ تصویر اخیستل فلم، ویډیو ، جوړول، لیدل اوکتل یا بل چاته لیږل او ښکاره کول حرام او ناجائز کار دی، لهذا په دې مهمه موضوع د امت اکابرو علماؤ او مدارسو خپل الٰهي مسؤلیت اداکړي او د حرمت فتاواوې یې پرې ورکړي دي، چونکه ما د اختصار په وجه هغه فتاواوې دلته ذکر نکړای شوې.

البته: حضرت مولانا مفتي فضل کریم دامت برکاتهم په خپل کتاب (ډیجیټل تصویر کې حرمت..) کې مفصل ذکر کړی دی، د هغو فتاواو نومونه لاندې ذکر ؤو.

١ : ( فتاوی یوسفیه /آپ کی مسائل ج ٨ ص ٣٢٨ )

**فتوٰی:** شيخ القران والحديث مولٰنامحمد ادريس صاحب چارسدوي.

**فتوٰی:** شيخ القران والحديث مولٰنامغفورالله باباجي صاحب.

**فتوٰی:** فضيلت الشيخ علامه عبدالله بن عقيل صاحب.

**فتوٰی:** فضيلت الشيخ علامه عبدالرازق العفيفي صاحب.

**فتوٰی:** فضيلت الشيخ علامه ابوذر قلموني المصري صاحب.

**فتوٰی:** دارالافتاء دارالعلوم ديوبند .

**فتوٰی:** دارالافتاء جامعه العلوم الاسلاميه علامه بنوري ټاون کراچي.

**فتوٰی:** دارالافتاء جامعه فاروقيه کراچي.

**فتوٰی:** دارالافتاء جامعه العربيه احسن العلوم کراچي .

**فتوٰی:** دارالافتاء جامعه اشرفيه لاهور .

**فتوٰی:** دارالافتاء جامعه العلوم الاسلاميه خيمه تيمرکره .

## موبايل او تلويزون

د تلويزون په مطلق حرمت باندې د ټولو علماؤ اتفاق دی، وجه داده چې تلوزيون د مختلفو مفاسدو مجموعه ده د مثال په توګه هغه مفاسد لاندې ذکر کوؤ، داسې فکر کيږي چې د تلوزيون په ليدلو کې به فقط دا يوه ګناه وي چې هغه تصوير ته کتل دي، ليکن که په ژور نظر ورته وکتل شي د بې شميره ګناهونو مجموعه ده.

د ګناه د آلې استعمال،ددې په اخیستلو د مال ضائع کول، تصویر جوړول، تصویر لیدل، تصویر ښودل، د رحمت د ملائکو لرې کیدل، د لعنت مستحق جوړیدل، د کفارو سره مشابهت، د سړیو لپاره د پردیو ښځو لیدل، د غیر محرم ښځو آوازونه اوریدل، د ښځو لپاره د پردیو سړیو آوازونه اوریدل، پهلوانان، نشان ویشتونکي، او لوبغاړي چې عموما نیم بربنډ وي د هغوی دلیدلو ګناه، تقریبا دا ټول ګناهونه پخپل ځای کبیره او د سختو وعیدونو مصداق دي، د مثال په توګه د معصیت آلات او په هغو کې د مال دولت ضائع کولو متعلق الله جَلَّجَلَالُهُ په قرآن کریم کې فرمایي؛

ومن الناس من یشتري لهو الحدیث لیضل عن سبیل الله بغیر علم ویتخذها هزوا اولئكُ لهم عذاب مهین. (۱)

بعضې خلک داسې دي چې د هغو خبرو اخیستونکي دي چې غافل کوونکي دي...الخ د لهوالحدیث په تفسیر کې سیدنا عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي. الغناء والذي لا اله الا هو یرددها ثلاث مرات. (۲)

ددې څخه مراد سندرې دي، زما دی په هغه ذات قسم وي چې د هغه څخه بل معبود نشته درې ځله یې دا جمله تکرار کړه. (۳)

---

۱: [صوره آیت]

۲: (تفسیر ابن جریر ج۲۱ص ۳۶)

۳: (احسن الفتاوی ج۸ ص ۲۹۰)

اوس دې خبرې ته راځو چې آيا د تلويزون او موبايل ترمينځ څومره توپير دی، موبايل په تلوزيون باندې قياس کولې شو او کنه؟ د تلويزون اړوند مفاسد او جرائم ترکومه حده د موبايل سره شته.

دا تر لمر روښانه خبره ده د کومو مفاسدو له مخې چې علماؤ تلويزون مطلق حرام ګرځولې دی، هغه ټول په موبايل کې وجود لري، بلکه موبايل د تلوزيون څخه تر ډېره حده وړاندې پيش رفت کړی دی.

هغه داسې چې همدا تلويزون د انټرنيټ پر مټ د موبايل له مخې تعقيب او ليدل کيږي، همدارنګه په ژوندۍ بڼه چې څومره پروګرامونه دي د موبايل له لارې ليدل کيږي عکس اخلي فلم او ويډيو جوروي، بلکه مختلف النوع فحاشي عرياني د فلم ويډيو او د تصوير په شکل پرې ليدل کيږي، فقط دومره توپير لري چې پخوا به تلوزيون د کورنۍ په سطحه استعماليده اوس فردا فردا استعماليږي، د تلوزيون په ټولو صفاتو مشتمل موبايل د هر نر او ښځې جيب ته راغی.

البته بل واضح توپير يې دادی چې د تلويزون نشرات ستا په اختيار کې ندي، او د موبايل استعمال ستا په اختيار کې دي، څنګه چې ته غواړې استعمالولې يې شې، ته کولې شې چې ښه مفيده استفاده

ځيني وکړې او هم کولې شي چې غلطه فائده ځيني واخلي.

بهر تقدير مسلمانانو ته ورځ تر بلې د پيش رفت او پر مختګ په پلمه داسې مهلک او تباه کونکي وسائل راواردېږي چې دا په حقيقت کې دکفارو لخوا د يو لوی جنګ اعلان دی او د يو ساري مرض په څير خوريږي، الله جَلَّجَلَالُهُ دې د امت په حال رحم وکړي . آمين ثم آمين.

## راډيو او تلويزون د ديني مقاصدو لپاره استعمالول

**پوښتنه** :جناب عالي ! راډيو ،تلويزون ،او وي سي آر ،هغه آلات دي چې دسندرو ويلو لپاره او دتصويرونو د نمائش لپاره جوړ شوی دي ،او دهمدې غلطو مقاصدو لپاره په مستقله توګه استعماليږي (لکه څنګه چې مشاهده ده) ،خو ددې سره سره دمذهبي پروګرامونو په نوم د مختصرو وختونو لپاره د قرآن کريم تلاوت، تفسير،حديث،آذان،درس وغيره وړاندې کيږی،پوښتنه داده چې آيا ددې مروجه آلاتو استعمال جائز دی؟آيا همداسې د قرآن، حديث،او دديني شعائرو تقدس نه مجروح کيږي ؟

**پوښتنه**: آيا په يو اسلامي ملک کې ( مذهبي پروګرام )او نور پروګرامونه يا ( مذهبي امور ) او د نورو امورو تفريق ،داسلام د تصور حيات نفي نه ده ،چې دهغوی ټول پروګرامونه او ټول امور

مذهبي او ديني دي او دانساني ژوند يوه شعبه يا ددين دکار څخه بهر نه دی ؟

**جواب**: کوم آلات چې د لهو او لعب (فضولياتو) لپاره وضع شوی دي،هغه د ديني مقاصدو لپاره استعمالول ددين بې عزتي ده ،ځکه ځينې علماء خو په راډيو باندې تلاوت هم منع بولي ،خو ما د راډيو په باره کې داسې سختي نده ښودلي،زه د جائزو شيانو لپاره د راډيو استعمال جائز ګڼم ،خو تلويزون او دهغه ذريت مطلقا حرام ګڼم .(١)

## که د تلويزون ليدل حرام وي نو علماء ولې پرې راځي

تلويزون حرام دی، ځکه چې ددې دارو مدار په تصوير باندې دی، او تصويرونه نبي کريم صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ موجب د لعنت بللي دي، د علماؤ تصويرونه په اخبارونو کې چاپولو سره يو حرام شی نه حلاليږي، البته د حرامو مرتکب ګناهګار دي، په دې شرط چې دده په اراده او اجازت سره وي، د تلويزون لعنت ايجاد د دين، اخلاقو، انسانيت، تهذيب، او شرافت د بنياد ايستلو لپاره شوی دی، هر څوک چې دا لعنت جائز بولي هغه د تلويزون دعواقبو او نتائجو څخه ناخبره دي، هغوی د شرعي دلائلو پرځای دعامه مصلحت په بنياد فتوٰی ورکړی ده.

١: (فتاوی يوسفيه / آپ کی مسائل ج ٨ ص ٣٢١)

په شریعت کې شرعي حکم په دلائلو او اسبابو باندې ورکول کیږي د فتوٰی مدار دیو شي په استعمال باندې نه دي، حرام شیان د ښوالي لپاره یا په ښه نیت استعمالولو سره نه حلالیږي.(۱)

## د علماؤ په تلویزون باندې راتلل د تصویر د جواز دلیل نه شي جوړیدلې

دا اصل په ذهن کې وساتئ چې ګناه په هرحال کې ګناه ده، هغه که خدانخواسته ټوله دنیا هم پکې ملوثه شي، (لکه څنګه چې بعضې حضرات وایي چې کله عموم بلوا شي نو ګناه هم رواشي هیڅ کله داسې نده) بل اصل داهم دی باید په فکر کې وساتل شي، کله چې کومه بدکاري عامه شي، اګر چې د هغې نحوست هم عام شي لیکن انسان د خپل فعل مکلف دی، داول اصل مطابق یو شمیر علماؤ په تلوزیون کې راتلل ددې د جواز دلیل نه دی، او نه د امام حرم تروایح کول په تلویزون کې ددې دلیل کیدائ شي.

**د مثال په توګه** که کوم ډاکټر او طبیب په کوم مرض کې مبتلا شو نو مرض خو هم هغه مرض دی دې ته خو څوک د صحت نوم نه شي ورکولې، د دوهم اصل مطابق کله چې د قانوني مجبورۍ په اساس د تصویر اخیستلو ضرورت پیښ شو یا په تصویر کې څوک ملوث

۱: (فتاوی یوسفیه /آپ کی مسائل ج۸ ص ۴۴۳)

شو ، نو که چيرته دغه کار په زړه کې بد ګڼې نو نه ګناهګاريږې، د الله تعالى درحم او کرم څخه دا اميد دى، چې په دې باندې دده مواخذه ونکړي، ليکن که دکوموخلکو په اختيار کې وي چې دا بد کاري ختم کړي ددې باوجود يې نه ختم کوي دا سړى ګناهګاريږي. (۱)

## د تلويزون او انټرنيټ په اړه
## د نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خبرداری

دا يو منلى حقيقت دى چې رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تر قيامته پورې راتلونکو ټولو فتنو څخه خپل امت خبر کړى دى، دا په داسې پاکه زمانه کې چې په هغه وخت کې ددې فتنو او خبائثو نوم او نښان هم نه ؤو ، دې لپاره عموما نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په داسې پيش ګويانو کې داسې تشبيهات ورکړي دي چې په هغو به صحابه کرام رضوان الله عليهم اجميعن ښه پوهيدل.

څرنګه چې بخاري شريف کې صحيح حديث دى حضرت عروه رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې ماد امامه رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ څخه واوريدل چې فرمايل يې اشرف النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من اطام المدينة فقال هل ترون ما ارى اني لارى مواقع الفتن خلال بيوتکم کموقع القطر.(۲)

---

۱: (احسن الفتاوى ج۸ ص ۲۹۹ ، اپ کى مسائل ج۸ ص ۴۷۳)
۲: (صحيح البخاري ج۱ ص ۲۵۲)

یو ځل نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مدینې منورې د آبادیو څخه د کانړو یوې لوړې آبادۍ ته پورته شو ویې فرمایل آیا هغه څه چې زه یې وینم تاسو یې هم وینئ؟ زه ستاسو په کورونو کې دننه د فتنو نازلیدلو ځایونه داسې وینم لکه څرنګه چې دباران څاڅکي وریږي او پریوځي.

**مولانا احسان الله شائق صاحب** لیکلي دي چې په نن صبا وخت کې د مصنوعي سیاو زیات کشمکش روان دی، د خط استوا په شاا و خوا په درجنو سیارې موجودې دي، چې ددې سیارو لوړوالی په مختلفو اندازو کې دی، بعضې سیارې لس زره او بعضې یې د څلویښت زره کلیومترو په اندازه لوړوالی لري نو د موبایل، کمپیوټر، اونورو معلوماتي وسائلو تعلق او رابطه ددې سیارو سره هر وخت قائمه او جاري وي؛

مخکې د رڼا متعلق یوه اندازه معلومات مونږ لیکلي دي چې رڼا په خلاء کې دوړو وړو ذرو په شکل څپې وهي حرکت کوي، او د آوازونو ضابطه هم ددې په څیر ده بهر حال نن د دنیا هیڅ یو ښار په شمول د **مدینې منورې زادها الله عزا وشرفا** د تلویزون او انټرنیټ څخه خالي ندي.

لهذا داخبره صحیح او ثابته شوه چې د فضا څخه په دې کورونو باندې فتنې د باران په څیر راوریږي، نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته چې

الله تبارک وتعالی څومره قوت او بصیرت ورکړی ؤو هغه دا اهل العلم په وړاندې روښان دی، د ډیرو باریکو باریکو فتنو ادراک او احساس یې کړی او خپل امت ته یې ښودلي دي؛.

**قاضي عیاض** رَحِمَهُ ٱللَّهُ لیکلي دي فرمایي چې د نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په لمانځه کې شاه طرفته هم داسې نظر لرېده لکه څرنګه به یې چې مخامخ لرېده، او په توره تیاره کې به یې هم داسې نظر لرېده لکه څنګه به یې چې په رڼا کې لرېده، د فرښتو او شیطانانو د لیدلو په اړه خو ډیر صحیح احادیث موجود دي چې لیدل ترې ثابت دي، د نجاشي جنازه چې کله نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوله دده جسد یې لیدلو، همدارنګه چې کله قریشو د نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په معراج اعتراض وکړ او د بیت المقدس په اړه یې ترې وپوښتل نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بیت المقدس ته کتل او ددوی پوښتنې یې ځوابولې، او چې کله مسجد نبوي شریف جوړېده کعبه مبارکه یې لیدله، او د نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه دا خبره هم مروي ده فرمایې چې زه په ثریا کې یوولس ستوري وینم، وهذا کُلها محمولة علي روية العين وهو قول احمد بن حنبل وغیره ....الخ ... (۱)

---

۱: (الشفاء ج ۱ ص ۴۳)

## د اسلامي فلم ، کتل

**پوښتنه :** مونږ د پوسټل کالوني سائټ کراچۍ اوسيدونکي يو ،يوه مهمه مسئله په اسلامي رڼا کې حل کول غواړو ،هغه دا چې په انګريزي ژبه کې په اسلامي موضوعاتو باندې دجوړ شوي فلم په باره معلومات غواړم،په هغه فلم کې حضرت ابوبکرالصديق، حضرت عمر فاروق، حضرت امير حمزه، حضرت بلال حبشي، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ او د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اوښې مبارکې آواز هم په مختصره طريقه اوريدل کيږي، مسئله دا پيښه ده چې آيا د يو اسلامي فلم په حيثيت سره دافلم کتل جائز دي؟ يا داچې ددې فلم په کتلو سره دګناه مرتکب شوي يو. ؟

**جواب** : دافلم اسلامي فلم نه دی،بلکې داسلام او د اکابرو داسلام پورې دخندا کولو مترادف دی، ددې کتل ګناه کبيره ده . (۱)

## په تلويزون باندې د حج فلم کتل هم ناجائز دی

**پوښتنه** :په دې مخکې ورځو کې په تلويزون باندې د حج فلم وښودل شو ،چې هغه ډېرو خلکو هم وکتلو ،پوښتنه داده چې په اسلام کې په ژوندۍ بڼه دفلم څه حيثيت دی؟ يو سړی وايي چې ويډيو فلم

۱: ( فتاوی يوسفيه / آپ کی مسائل ج ۸ ص ۳۶۲ )

چې هرقسم وي جائز دی، ځکه چې دا د ساینس ایجاد دی او د ترقۍ نښانه ده، لهذا دا په استعمال کې راوستل کېدای شي، په دې شرط چې په هغه کې ښځه نه وي، آیا د دغه سړي دا خیال صحیح دی.؟

**جواب**: کوم سړی چې تلویزون او ویډیو فلم ته جائز وایي هغه خو بالکل غلط وایي، په شریعت کې تصویر مطلقا حرام دی، که د دقیانوسي زمانې د خلکو په لاس هم جوړ شوی وي، یا په جدید ساینسي طریقې سره جوړ شوی وي، ترکومې پورې چې د حج د فلم تعلق دی، د هغه فلم جوړولو واله هم ګناهګار دی او کتونکي یې هم، دواړو ته به د عذاب او لعنت پوره پوره برخه ور رسیږي، په دنیا کې خو ورته رسیږي، د آخرت دې انتظار اوباسي. (۱)

## موبایل او انټرنیټ لویه فتنه ده

د مسلمه امت د دین، ایمان، اخلاقو، عقائدو دله مینځه وړلو خرابولو لپاره کفارو په هره زمانه کې په مختلفو محاذونو خپل جنګ جاري ساتلی دی چې په اوسني وخت کې یو محاذ یې د موبایل پرمټ تر ټولو په لومړي خط کې لاس په کار دی، پخوا به فقط د تلویزون له لارې فحاشي او عریاني خپریده، اوس یې دا فتنه هرهر کور او د هر فرد جیب ته ورسوله.

---

۱: ( فتاوی یوسفیه / آپ کی مسائل ج ۸ ص ۳۲۲ )

**د دارالعلوم دیوبند محدث کبیر مولانا مفتي سیعد احمد پالن پوري** دامت برکاتهم لیکلي دي فرمايي چې انټرنیټ او ورسره تړلې ټولې شبکې لکه ګوګل، ټویټر، فیس بوک، واټساپ، یوټوب، او ماسنجر، وغیره د موجوده وخت ایجادات دي دا په بنیادي وضع کې مفید دي، لیکن حاضر وخت کې فحاشي عریاني لایعني او لغویات د خراب ماحول له وجې ددې شیانو صحیح استعمال کم او غلط فضول استعمال ډیر کړی دی، بل طرفته د زمانې ترقۍ او د اسبابو وسائلو زیاتوالي ددې شیانو حصول انتهائي اسان او انتهائي ارزان کړی دي،

**ددې نتیجه دا شوه** چې عام و خاص یو غټه طبقه خلک پرې ورمات دي، ددې شیانو په استعمال کې په داسې اندازه مست دي چې په عموم کې خلکو ته د صحیح غلط، جائز ناجائز، ضرورت فضول او لایعني کوم تمیز او احساس نه دي ورپاتې شوی، د الله تعالی څخه ویره د آخرت دفکر فقدان یاددې د کمې د احساس څخه یې محروم کړي دي، ددې وباء څخه د مکاتبو پوهنتونو او د اسلامي مدارسو استاذان او طلباء هم محفوظ پاتې نه شول چې د هغې اثر د طلباؤ محصلینو په تعلیم او تربیت باندې پریوت، ددې وجې څخه ډیر سخت ضرورت دی چې د انټرنیټ او وابسطه شبکو د زیان او غلط استعمال په ګوته کولو او د نیټ د قباحت څخه امت مسلمه خبر کړل شي.

همدارنګه مهتمم جامعه اشرف العلوم شیخ طریقت رهبر شریعت **مولانا عبدالقوي صاحب مدظله العالي** لیکلي دي فرمايي چې معلوماتي ټکنالوجۍ په دې نړۍ زمانه کې چې څومره په تیزۍ سره ترقي کړي ده ددې مثال په ماضي کې نه لیدل کیږي، یقینا موبایل په کار راتلونکي آله ده، او د ارتباط یوه ښه ذریعه ده مګر ددې آلې سره ډیرې داسې اسانتیاوې هم تړلي دي چې په حاضر وخت کې يي د هر عامي او عالم مشاغل بدل کړي دي، تعلیم، نظام، سیاست، پوهنه، اقتصاد، وغیر د ژوند اړونده شعبو ته د موبایل سره تړلیو اسانتیاؤ دبې ځایه استعمال په وجه بې حده نقصان رسولی دی، دا صحیح خبره ده چې موبایل کې موجوده اسانتیاوې د بعضي پلوه مفیدې دي لیکن د **اثمهما اکبر من نفعهما** مصداق پرې ثابتیږي.

دانټرنیټ متاع چې نن کومه خاوره پلیده کړې ده د هغې حال د بیان څخه بهر دي بلکه دبیان ضرورت يې نشته **عیان راچه بیان** بالخصوص داهل العلم او خادمانو ددین لپاره ډیره په زړه پوري مشغله جوړه ده، ددوی وخت څومره قیمتي دی د دوی پر اوګو ددین، وطن او ملت څومره عظیم مسؤلیت پروت دی، ددې احساس څخه ناخبره په انټرنیټ ورننوتلي دي الا ماشاء الله،او تردې حده بې کاره او پرخرافاتو ولاړ مواد يو بل ته لیږل کیږي چې انسان حیران کوي،

کله سړی داسې فکر کوي چې ګواکې انټرنیټ به یو جادو وي، چې یو ځل دې رابطه ونیوله بیا عقل کار پرېږدي سړی د شرابي په څیر د چار اطرافو څخه ناخبره وي، د شپې یوې یوې دوو دوو بجو پورې داکار روان وي.

**افسوس** د کومو خلکو به چې شپې په ذکر، تلاوت، دعاء، عبادت او د علم په تحقیق کې تیریدلې او دا به یې بهترینه موقع ګڼله اوس هغه وخت د انټرنیټ په واسطه په فیس بوک، ټویټر، واټساپ، او خدای خبر په څه څه صبا کوي چې ددې په وجه زړونه پراګنده افکار خیالات منشتر او اخلاق ابتر شول او هم کیږي.

حتی چې د اهل حقوقو حقوق ضائع شول او اهل عیال د رحم او محبت څخه محروم شول، حال دادی چې که هر قسم نقصان پیښیږي ددې خوږې مشغولتیا څخه لاس نه اخلي، الله جَلَّجَلَالُهُ دې د امت د اصلاح مهرباني وفرمايي. آمین

## د فتنو په زمانه کې د اعمالو ثواب

د فتنو او مشکلاتو په زمانه کې اجر او ثواب هم زیاتیږي، هغه په دې معنٰی چې سړی امربالمعروف کوي او پخپله هم عمل پرې کوي، او نهي عن المنکر کوي او پخپله هم ځان ترې ساتي.

لکه څرنګه چې د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حدیث مبارک دی فرمایي چې ستاسې (یعنې د صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ) څخه به وروسته د صبر ورځې راځي چې څوک په دې ورځو کې صبر وکړي (یعنې په دین باندې ثابت قدم پاتې شي) ده ته به داسې تکلیف وي لکه په لاس کې یې چې د اورسکروټې نیولي وي، په دې ورځو کې په دین باندې عمل کونکي ته به الله تعالی ددې زمانې د پنځوس کسانو اجرورکوي، چې د دې زمانې څخه علاوه په نورو ورځو کې ددې زمانې په خیر عمل وکړي، صحابه کرامو عرض وکړ چې یا رسول الله ددې زمانې د پنځوس کسانو اجر به ورکول کیږي ؟ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې ستاسو د پنځوس عمل کوونکو په خیر ثواب به ورکول کیږي. (۱)

یوبل حدیث مبارک کې راځي رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي چې د قتل فساد او بلواګانو په زمانه کې عبادت کول زما طرفته د هجرت کولو سره برابر دي . (۲)

همدارنګه بیهقي په دلائل نبوت کې دا حدیث شریف روایت کړی دی فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل بیشکه ددې امت په آخر

---

۱ : (مشکوٰة شریف ، باب الامر بالمعروف ص ۴۳۷)
۲ : (پورته حواله ص ۴۳۷)

کې به داسې خلک وي چې دوی ته به هغه ثواب ورکول کیږي کوم ثواب چې ددې امت لومړنیو ته ورکول شوي ؤو دوی به امربالمعروف او نهي عن المنکر کوي او دفتنه ګرو سره به قتال کوي. (۱)

## د انټرنیټ شرعي حکم

**د فقیه العصر عالم رباني حضرت مولانا مفتي شیعب الله خان مدظله العالي مهتمم جامعه اسلامیه مسیح العلوم هندوستان .بنګلور فتوی**

**پوښتنه:** د انټرنیټ استعمال په اسلام کې جائز دی او کنه او ددې څه حکم دی؟ مونږ ډیر علماء کرام لیدلي دي چې انټرنیټ استعمالوي، همدارنګه بعضي مدارس هم ترې کار اخلي، که چیرته دا جائز وي نو دده او د تلویزون تر مینځ څه فرق دی، او علماء تلویزون ته ولې ناجائز وایي، لکه څرنګه چې دا خبره واضحه ده چې انټرنیټ د تلویزون څخه زیات خطرناک دی، او ځوانانو لپاره د تباهۍ په لور دعوت کولو کې تر ټولو بد ترینه آله ده.

**الجواب :** انټرنیټ یوه داسې آله ده چې ددې پرمټ دواړه قسمه کار اخیستل کیږي، دا خبره له هیچا پټه نده چې ددې په ذریعه په زرګونو قسمه علمي او تعلیمي دیني کارونه کول آسان شوي دي ، ددې څخه فائده اخیستونکي ډیرې ښې ښې فائدې اخلي، خو ددې

۱: (مشکوٰة شریف باب ثواب هذه الامة ص ۴۸۴)

سره سره د فحاشۍ او بې حيايۍ يوه لويه لار هم خلاصه شوی ده په فحاشۍ او بې حيايۍ باندې زړه بايلونکي يې ددې خبائثو لپاره ښه په شوق سره استعمالوي، د ځوانانو ډيره لويه برخه ددې وجې څخه د هلاکت او تباهۍ ښکار شوي ده، حقيقت دادی چې دا د انټرنيټ غلط استعمال ددوی دخپل طبيعي رذالت او خباثت نتيجه ده، او که ته غواړې د فائدې په کارونو کې ترې کار اخيستلی شي، لهذا د تلوزيون او انټرنيټ حکم يو شان ندی، بلکه په دواړو کې ډير فرق دی واضح فرق په دواړو کې دادی چې د تلوزيون په پرده چې څه ښکاري دا زمونږ په خپل اختيار کې نه دي ، بلکه دا د نورو خلکو په قبضه کې دي، لهذا په دې چې څه نشريږي لا محاله به دا ليدل کيږي، او په دې باندې چې کوم قسم پروګرامونه خپريږي په دې کې يو پروګرام هم د شرعي حدودو په جواز کې نه دی، ځکه چې که نور هيڅ هم نوي نو تصوير خو شته او ددې حرمت واضح دی، ددې وجې څخه علماؤ دا ناجائز ګرځولی دی.

ددې بالعکس انټرنيټ داسې يو شی دی چې د هغې استعمال د هر سړي په خپل اختيار کې دی او په ديکې هم (لکه څرنګه چې مخکې ذکر شول) جائز او ناجائز ، ښه اوبد ، صحيح او غلط، هر قسم شيان وي، ديکې شک نشته که يو طرفته يو صالح انسان دا په جائزو او مفيدو مقاصدو کې استعمالول غواړي نو دده لپاره

انتهائي مفید او ګټور شیان پکې وي، ددې لپاره دا په دیني او جائزو مقاصدو کې استعمالول جائز دي، او که چیرته څوک ددې استعمال په غلطو کارونو او په ناجائزو خبرو او د فحاشۍ بې حیایۍ شیانو لپاره استعمالوي بیا دده لپاره حرام او ناجائز دی.

**خلاصه داده** چې په انټرنیټ کې دواړه قسمه شیان شته ښه هم او بد هم، جائز هم او ناجائز هم، ددې وجې څخه دیته علی الاطلاق جائز یا ناجائز باید ونه ویلې شي، بلکه ددې په حکم کې تفصیل کیږي که د جائزو مفیدو دیني مقاصدو لپاره استعمالیده دیته باید علی حسب المراتب جائز یا مستحسن وویلي شي، او که ددې استعمال په ناجائزو او خرابو خبرو او د فحاشۍ بې حیایۍ لپاره وي نو بیا دیته حرام او ناجائز ویل کیږي.

مګر تلویزون ددې برعکس صرف په ناجائزو امورو مشتمل وي، ځکه چې په دیکې کم ازکم دذي روح تصویر ضرور وي چې هغه ناجائز دی، او د تصویر څخه بغیر د تلویزون تصور نه شي کیدای، ددې وجې څخه د تلویزون په حکم کې د تفصیل کولو هیڅ وجه نشته، بلکه دیته علی الاطلاق حرام ویلي کیږي،.

او که چیرته دا شبه وه (څنګه چې یو عالم زما مخې ته وړاندې کړه) چې په انټرنیټ کې یو نایو قسم بلکه فاحش تصویرونه مخې ته

راځي او د هغو څخه ځان ساتل ناممکن وي، نو پکار ده چې دا هم د تلويزون په څير ناجائز وګرځولې شي يا تلويزون هم جائز کول پکار دي.؟

نوددې جواب دبنده په نزد دادی چې په انټرنيټ کې قسما قسم تصويرونه پخپله راځي چونکه دامقصود ندي،اودا دانټرنيټ استعمالونکي په نيت پورې منحصر دي، ددې لپاره ددې مثال داسې دی لکه په لاره تلونکي ته چې په لاره زنانه راشي، دانه شې ويلې چې په دې لاره تلل حرام دي، دا ويلې شي چې زنانه ته به نه ګورې او د خپل نظر حفاظت به کوې او په لاره به ځې.

خو که د چا مقصد د لارې تللو څخه دا وؤ چې ښځو ته وګوري نو بيا دا ويلې شي چې دده دا تلل حرام دي، ځکه چې دده نيت خراب دی، همدارنګه د انټرنيټ استعمالونکي هم که په دې نيت وي چې فاحش او بې حياء کار ځينې واخلي ددوی لپاره يې ناجائز ويلې شو، او که چيرته دا مقصد نه وؤ بلکه مقصد يې صحيح يا جائز وؤ بلا قصدو اراده څه تصويرونه دې کې راغلل، دا ويلې شو چې د نظر د حفاظت خيال کوئ او بيا دا استعمالوي، اميد دئ چې ددې تقرير څخه به ان شاء الله العزيز ستاسو اشکال ختم شوي وي.(۱)

۱: (ټيلي ويژن اسلامي نقطه نظر سی ص ۱۳۲)

## د جمعیت علماء هند الادارة المباحث الفقهية وړانديز

انټرنیټ په نن صبا وخت کې یوه داسې معلوماتي ذریعه ده چې په دیکې هر قسم ښه او بد پروګرام کیږي، خو په حاضر وخت کې زیاتره دا په ناجائزو او حرامو شیانو کې استعمالیږي، لیکن په دیکې شک نشته که چیرته د شریعت په حدودو کې د ننه استعمال شي نو دمنکراتو فواحشو څخه به محفوظ او ډیرې لویې تعلیمي، تجارتي، امنیتي وغیره فوائد به ترې حاصل کړو، ددې لپاره دا فقهي اجتماع د انټرنیټ استعمال په جائزو حدودو کې جائز بولي، او ددې ناجائز استعمال ناجائز او حرام بولي.[1]

## د انټرنیټ په اړه د جامعة العلوم الاسلامية بنوري ټاون کراچي فتوی

د اسلام د مقدس دین علماء کرام څه فرمایي په دې مسئله کې چې په انټرنیټ باندې مختلف پروګرامونه راځي شرعا د انټرنیټ د استعمال څه حکم دی.؟ مدلل جواب مطلوب دی؛

المستفتي: سید احمد مجاهد کالوني ناظم آباد کراچي

**الجواب: حامداومصليا:** دا خبره واضحه ده چې دنیا د ترقۍ په لور روانه ده، هره ورځ یو نایو نوی سائنسي ایجاد زمونږ مخې ته

۱: (پورته حواله ص ۱۵۰)

راځي، که د کوم کار په کولو او د کوم شي په لیدلو کې ډیر اوږده وخت ته اړتیا وي، نو دا ټول مشکلات او پریشانۍ، سائنسي ایجاداتو ډیر آسان کړل، د ساعتونو کار په منټونو کې او د منټونو کار په سانیو کې کوي، مثلاً که د کومې حوالې ضرورت شو بټن ووهه د ډیرو لرو ملکونو د کتابخانو څخه به په خپل کور کې ناست حوالې تر لاسته کړې.

څرنګه چې اخبار، کتابونه، راډیو، تلویزون، سټیلائټ، ډیش، او داسې نور وسائل د کمپائن چلولو په میدان کې ډیر مهم کردار آدا کوي، همدارنګه اوس یوه نوي سلاح دې میدان ته را داخله شوې ده، او په یو نوي شکل د اسلام په اساساتو باندې د حملو کولو سبب جوړه شوي ده چې هغه انټرنیټ دی، دا یو خاص ساینسي اختراع ده، ددې د مقصد معلومول په صحیح معنې د هغه چا مسؤلیت دی چې څوک کار ځینې اخلي.

د انټرنیټ متعلق داخبره کیږي چې دا په خپل ذات کې نه سافټ وئیر دی او نه کوم هارډوئیر دی بلکه دا د زرګونو او لکونو کمپیوټرونو خپل منځي اړیکې نوم دی، دا نه دیو شخص لپاره دی، او نه دیو فرد ملکیت دی، او نه مونږ د کوم شخص یا اداري فکر کولې شو چې انټرنیټ دې چلوي، په آسانو الفاظو کې به دا

وو ایـو چـې دا پـه دا سـې طریقـه استعمالیږي چـې د مختلفـو کمپیوټرونـو پـه واسطه خلـک یـو لـه بـل سـره نښـلوي، د انټرنیـټ استعمالونکي ته صرف دومره کول پکار دي چې په دې شبکه کې د شرکت کولـو لپـاره د اکاونټ پـه پرانسـتلو کنکشـن واخلـي، همدا رنګـه انټرنیـټ فقـط دخپلو افکارو خیـالاتو خپرولـو او د مختلفـو مقاصدو لپاره د استعمال یوه آله ده.

پـه دې شـبکه بانـدې د بـاطلو قومونـو د ایجـارې د تسـلط پـه وجـه اکثـره پروګرامونـه د اسـلام مخـالف دي ، لهـذا ددې مسـئلې پـه صورت کې د شریعت پـه حدودو کـې اوسیدل د اسلام تعـارف او نشـرول د صـحیح عقائـدو تـرویج او دبـاطلو عقائـدو تردیـد ، او د فقهـه او فتـوٰی او هـم د جـائزو مقاصـدو لپـاره د انټرنیـټ استعمال شرعا صـحیح دی، ا وپـه دې بانـدې دینـي پروګرامونـه هم صـحیح دي، او همدا رنګـه د علمـاء حـق بیانونـه او د قـرآن کـریم تـلاوت او تفسیر په انټرنیټ باندې بغیر د تصویر او عکس څخه نشرول جائز او صحیح دي.

لـیکن پـه انټرنیـټ بانـدې راتلـونکي بربنـډ تصـویرونه او نـور خـراب پروګرامونـه لکـه فحاشـې صـحنې، بربنـډ او غیـر بربنـډ خـراب ګنـده فلمونو ویډیوګانو د لیدلو او اوریدلو هیڅ کله اجازت نشته حرام دي.

انټرنیټ ددې جدید دور داسې ټکنالوجي ده چې ددې څخه مفید او مضر دواړه کارونه اخیستل کیږي ، البته کوشش کول په کار دي په دیکې چې څومره غلط اثرات دي د هغې څخه خپل ځان محفوظ وساتئ ددې شبکې سره اړیکه نیول او په جائزه دائره کې د کارولو هیڅ قباحت نشته. فقط والله اعلم؛

کتبه مختاراحمد ؛ متخصص في الفقه الاسلامي، جامعة العلوم الاسلامیه علامه محمد یوسف بنوري ټاون کراچي

۱۹ شوال المکرم ۱۴۲۸ هجري ۱ نومبر ۲۰۰۷عیسوي

الجواب صحیح — الجواب صحیح

محمدعبدالمجید دین پوري — محمد عبدالقادر

## په ایزي لوډ (کریډیټ) باندې د زکوة مسئله

زکوة یو اهم عبادت دی چې الله تعالی په مالدارو خلکو باندې فرض کړی دی، په زکوة کې هرهغه شئ ورکولی شې په کوم باندې چې دمال اطلاق کیږي، د ایزي لوډ یا کریډیټ په ذریعه د موبایل کمپنۍ خپلو مشتریانو ته ددې قیمت په بدله کې د یو معلوم وخت لپاره د خبرو کولو او رسائلو لیږلو اسانتیا ورکوي، ددې وجې څخه په موبایل کې جمعه شوي قیمت ایزي لوډ (کریډیټ) باندې د مال مقبوض تعریف نه صادقیږي .

د مال تعریف د اهل لغت علماء داسې بیانوي: مال كُل ما يملكُه الفرد او تملكُه الجماعة،من متاع، او عروض التجارة،او عقار،او نقود،وحيوان جمع وقد اطلق فيالجاهلية على الابل . (۱)

همدارنګه حصرت مولانا وحيد الزمان كيرانوي رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ ليكلي دي چې،مال،دولت،هرهغه كوروني ياد تجارت سامان،ياځمكه جائيداد، اوڅاروي، يانقدي سرمايې ته ويل كيږي،چې د يو فرد او جماعت په ملكيت كې وي،د جمع اموال اطلاق د جاهليت په زمانه كې صرف په اوښانو باندې كېده.(۲)

همدارنګه په زكوة كې ملكيت يعنې دغريب مالک ګرځول ضروري دي، چې ترڅو دغه مال د خپلو ضروریاتو په پوره كولو كې په خپله خوښه مصرف كړي.

**قال الامام المرغيناني** رَحِمَهُ ٱللَّٰهُ **،ولا يبني بها مسجد ولا يكفن بها ميت لانعدام التمليك وهو الركن**. (۳)

د زكوة په مال باندې نه مسجد جوړول كيږي،نه به ددې مال څخه مړي ته كفن وركول كيږي،ځكه چې په دېكې مالک جوړېدل

۱: (معجم الوسيط ج ۲ ص۸۹۴)

۲: ( القاموس الوحيد ۱۵۹۲ )

۳: ( الهدايةج ۱ ص ۲۲۲ )

معدوم دي،او هغه يې رکن دی-

څرنګه چې د ايزي لوډ (کريډيټ) په صورت کې دا پيسې کمپنۍ ته ورکول کيږي،او مشتريانو ته فقط د خبرو کولو اسانتيا ورکول کيږي،چې په هغه کې ملکيت نشته .

لهذا ايزي لوډ (کريډيټ) مال نه دی،او د عدم تمليک په وجه په دې باندې زکوة نه آدا کيږي . والله تعالی اعلم بالصواب)

## ايزي لوډ (کريډيټ) او د سود مسئله

هغه مالونه چې په هغې کې سود راتللی شئ-په هغو کې داندازې او د جنس يوالی ضروري دی،که چېرته په دې دواړو کې يو شرط هم نه وو بيا د کموالي او زياتولي سره په بيع کې مشکل نشته صحيح ده.

قال الامام المرغيناني رحمه الله،الربا محرم في كُل مكُيل أو موزون اذا بيع بجنسه متفاضلا ،والاصل فيه الحديث المشهور وهو قول عليه الصلوة والسلام :الحنطة بالحنطة مثلا بمثل يدا بيد والفضل ربا. ([1])

هرچې د ايزي لوډ مسئله ده،په دې صورت کې د مال تبادله په مال باندې نه ده،بلکه د مال په عوض کې د يو معلوم وخت لپاره د

---

۱: (الهداية ج ۵ ص ۱۷۲ :باب الربا)

خبرو کولو اسانتیا ورکول دي، ددې وجې څخه دا سود نه دی.

## موبایل او سندرې

د سندرو او موسیقي په اړه دلته یو څه لیکل ضروري بولو وجه داده چې دغه ګناه هم د موبایل په واسطه انتهائي عامه شوی او ډیره آسانه شوي ده، پخوا به ددې ګناه په ارتکاب کې یو څه تکلفاتو ته ضرورت ؤو لکه سینما ته تلل او ټیکټ اخیستل، یا ټیپ اخیستل درلودل د هغه لپاره کیسټونه بالتئ اخیستل ، سي ډي تلویزون وغیره دا هغه کارونه ؤو چې د ډیرو په وس به نوو پوره لیکن د موبایل په راتلو او عام کیدو سره په دې مرض اخته خلک ددې هر شي څخه بې نیازه او بې غمه کړل، لهذا په دې موضوع کې هم د قرآن او حدیث د حکم څخه خپل مؤمن ورونه او خویندې خبرؤو.

## موسیقي

په دې وخت کې په دنیا کې موسیقي او سندرې په داسې اندازه عام شوي دي چې هغه د هیچا څخه پټ ندي، تردې چي ددې ګناه بدوالی او قباحت هم له زړونو څخه وتلئ دي، ددې ګناه غټوالئ هم له فکره لویدلي دی، د موسیقي او سندرو شوقیان نه خپل ځانونه ګناهګار بولي او نه بل څوک له دې ګناه څخه منع کوي، د

تلویزون، موبایل، ډش، وي سي آر، ویډیوګانو فلمونو هر کور په سینما بدل کړی دی، زمونږ دمسلمانانو کورنیو او ځوانانو موسیقي او سندرو ته داسې زړونه ورکړي دي چې ورته وکتل شي نو غیر مسلم جامعه به هم ترې وشرمیږي، حال دادی چې په قرآن او حدیث کې پرې ډیر سخت وعیدونه وارد شوي دي، الله تعالی انسان د ډیر لګ وخت لپاره دنیا ته رالیږلی دی، دده اصل استوګنه عالم آخرت دی هلته همیشه او سیدل دی هلته به مرګ نوي.

څوک چې په دنیا کې داسې وه اوسیدل چې د آخرت لپاره یې کار وکړ تیاری یې وکړ، خپل اعمال، اخلاق، اوکردار یې سم کړل، حلال او حرام یې وپیژندل حلال یې اختیار کړل اوله حرامو یې پرهیز وکړ، الله تعالی چې د کومو کارنو څخه منع کړی له هغوی څخه یې ځان وساتلو هغه انسان کامیاب دی، دده به دآخرت ژوند ښه وي هغه به په آخرت کې خوشحال وي د ناز او نعمت ژوند به تیروي.

او ددې په خلاف چا چې دا دنیا د ژوند کولو مقصد وګرځوله، ددې لپاره یې کوشش وکړ، په حلالو او حرامو کې یې فرق ونکړ، اوخپل قیمتي وخت یې په لوبو، لهولعب، او فضول بې کاره کارونو کې تیر کړ دده به د آخرت ژوند ډیر بد وي، په آخرت کې به د الله تعالی غضب پرې نازلیږي، په تکلیفونو کې به مبتلا وي.

کوم خلک چې د موسيقي او سندرو په اوريدلو کې مشغول دي د دوی لپاره لګ سوچ او فکر په کار دی، چې خپله زندګي يې په څه طريقه برباد کړه، او الله تعالی ته به په ورځ د آخرت څه ځواب ورکوي، او الله تعالی ته به د خپل ژوند د هرې هرې لحظې حساب کتاب ورکوي، الله تعالی دې مونږ ټولو ته د عمل کولو توفيق راپه نصيب کړي. امين

## د موسيقي اوسندرو په حرمت باندې د قرآن کريم آيتونونه

موسيقي او سندرې غږول د امت د علماؤ په اتفاق سره حرام دي، په قرآن کريم او احاديثو کې په دې باندې سخت وعيدونه راغلي دي، الله جَلَّجَلَالُهُ فرمايي. و من الناس من يشتري لهو الحديث ليضل عن سبيل الله بغير علم و يتخذها هزوا اولئكُ لهم عذاب مهين.(۱)

**ترجمه:** يو هغه خلک دي چې اخيستونکي دي د لوبو د خبرو غافل کونکي دي د الله تعالی د لارې څخه په بې علمۍ سره ، او جوړه کړي دغې لره خندا داسې خلکو لپاره د ذلت عذاب دی. (۲)

ددې په تفسير کې حضرت مولانا محمد ادريس کاندهلوي رَحِمَهُ اللَّهُ ليکلي دي چې امام قرطبي روايت کړی دی فرمايي چې عبدالله ابن

۱ : (سورت لقمان ايت ۶)

۲ : (معارف القران)

عباس رضي الله عنه او عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه وغيره څخه منقول دی چې دا آيت شريف د ساز او سرود (موسيقي او سندرو) او فضول قيصو په باره کې نازل شوي دي. [1]

تفسيرابن کثيرليکلي دي چې عکرمه، سعيدبن جبير، مجاهد، مکحول ، عمروبن شعيب، علي بن هذيمه، او حسن بصري رحمهم الله د علماؤ تابعينو څخه همدغه قول منقول دی چې دا آيت شريف د سندرو او موسيقۍ په باره کې نازل شوی دی.[2]

کله چې د سندرو آوازونه د تحسين سره ؤو او د موسيقي قواعد پکې مراعات شوي ؤو بالاتفاق حرام دي،مطلب دادی چې په دې آيت شريف کې د لهوالحديث څخه قيصې نقلونه او د ساز او سرود سامان مراد دی، لکه ډول، باجه،رباب وغيره چې څومره د موسيقي آلات دي، همدارنګه خندونکي خبرې ناولونه، افسانې دا ټول د لهوالحديث په عموم کې داخل دي.

## د سندرو او ريدل يو شيطاني آواز دی

الله تبارک وتعالی فرمايي واستفزز من استطعت منهم بصوتكَ.[3]

---

۱: (قرطبي ج ۱۴ ص ۵۱)
۲: (تفسير ابن کثيرج۳ ص ۲۴۲)
۳: (سورت اسراء:۶۴)

**ترجمه:** او وویروه په دوی کې چې څوک ته ویرولی شې په خپل آواز سره.(۱)

**امام ابن کثیر** رَحِمَهُ اللّٰهُ ددې آیت شریف په تفسیر کې لیکلي دي چې په دې آیت شریف کې د شیطاني آواز څخه سندرې او موسیقي مراد ده، **او امام مجاهد** رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمایي چې ددې مطلب دادی چې (ای ابلیسه) ته د ټولو هغو چلونو، نندارو، سازاوسرودونو سره مغلوب شوې، او **حضرت ابن عباس** رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمایي چې په دې آیت شریف کې هر هغه آواز مراد دی چې د الله تعالی نافرمانۍ طرفته دعوت ورکوي، اوهمدغه قول د **حضرت قتاده** رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هم دی، او همدغه قول مفسر قران **ابن جریر** رَحِمَهُ اللّٰهُ هم اختیار کړی دی.(۲)

## موسیقي او سندرې عبث او بې فائدې کار دی

الله تبارک وتعالی فرمایي والذین لا یشهدون الزور واذا مروا باللغوا مروا کُراما.(۳)

**ترجمه:** اوکوم خلک چې نه شاملیږي د دروغو په کارونو کې او کله چې تیریږي په عبثو کارونو باندې نو تیریږي په عزت سره.(۴)

---

۱: (معارف القران)
۲: (تفسیر ابن کثیر ج۳ ص ۵۰)
۳: (سورت فرقان ایت ۷۲)
۴: (معارف القران)

**امام اعظم ابوحنيفه** رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايي چې د (زور) څخه ساز او سرود مراد دى.(۱)

**او حضرت محمد بن حنفيه** رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايي چې دا هغه خلک دي چې په خرابو عبثو او د سندرو په مجلس کې نه شامليږي. (۲)

**ابن جرير** رَحِمَهُ ٱللَّهُ مختلف اقوال را جمع کړي دي فرمايي چې د ټولو څخه صحيح قول دادى چې داسې وويل شي هغه (د رحمان بنده) په هيڅ قسم باطل کار کې نه شريک کيږي، نه په شرک کې نه په ساز او سرود کې او نه په دروغو کې ددې څخه علاوه داسې عمل چې په هغه باندې د زور اطلاق کيږي هم نه شريک کيږي بلکه د هغو څخه ځان ساتي.

## د موسيقي او سندرو په حرمت باندې احاديث مبارک

ابوداود شريف دا حديث مبارک روايت کړى دى عن ابن عباس رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ قال قال رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان الله حرم الخمر والميسر والكُوبة وكُل مسكُر حرام. (۳)

**ترجمه:** د حضرت ابن عباس رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ څخه روايت دى چې جناب

---

۱: (احكام القران)

۲: (معالم التنزيل ج۴ ص ۲۵۱)

۳: (ابوداود رقم الحديث ۳۵۲۱، نيل الاوطار بروايت عبدالله بن عمر ج۸ ص ۱۰۹)

نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې الله تعالى شراب، قمار، ډول باجه، وغيره حرام کړي دي، او هر نشته کونکی شئ حرام دی.

## د سندرو څخه خوند اخيستل حرام دي

د نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حديث مبارک دی عن ابي هريرة رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ان النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال استماع الملاهي معصية والجلوس عليها فسق والتلذذ بها كُفر. وقال في الدر المختار وغيره اى بالنغمة. ([1])

**ترجمه:** د حضرت ابوهريره رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ څخه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل سندرې آوريدل ګناه ده او ديته کيناستل فسق دی، او ددې څخه خوند اخيستل کفر دی، بيا مخکې د درمختار په حواله نقل کوي چې ددې څخه مراد په نغمه باندې خوند اخيستل دي.

## د موسيقي آلات ماتول

د نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حديث مبارک دی وروي ابن غيلان عن علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ان النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال بعثت بكُسر المزامير. ([2])

---

۱: (مرقاة شرح مشكوة باب البيان والشعر ج۷ ص ۲۲۵)، (نيل الاوطار باب ماجاء في آلة اللهو ج۸ ص ۱۱۳)

۲: (نيل الاوطار، باب ماجاء في آلة اللهو ج ۸ص ۱۱۳)

**ترجمه:** ابن غیلان د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ **څخه** روایت کوي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمایل زه د مزامیرو (یعنې د موسیقي د آلاتو ماتولو لپاره رالیږل شوي یم مطلب دادی چې د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په بعثت کې د موسیقي مزامیر له مینځه وړل هم شامل دي.

## د ډول او طبلې ممانعت

د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ **حدیث مبارک دی** اخرج القاسم ابن سلام عن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نهی عن ضرب الدف والطبل والصوت الزمار. ([1])

**ترجمه:** قاسم ابن سلام د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ **څخه** روایت کړی دی فرمایي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع کړي ده د ډول او طبلې د وهلو څخه او د موسیقي د آوازونو څخه.

یعنې د موجوده زمانې د موسیقي ټول آلات په دیکې داخل دي هغه که د موبایل زنګ دی او که د اخبار څخه وړاندې ساز او سرود دی وغیر ذالک.

## موسیقي په زړه کې نفاق پیدا کوي

د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ **حدیث مبارک دی** وعن ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ان

---

١: (نیل الاوطار باب ماجاء في آلة اللهو ج٨ ص ١١٣)، (کنزالعمال باب التغني المحظور ج١٥ ص ٢١٩)

النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال الغناء ينبت النفاق في القلب كما ينت الماء البقل . (۱)

**ترجمه:** د حضرت عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ څخه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل موسيقي په زړه کې داسې نفاق پيدا کوي لکه څنګه چې اوبه ګيا (بوټي) را زرغونوي.

## د موسيقۍ په غږولو اوريدلو سخت وعيدونه

د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حديث مبارک دی ؛و عن ابن مالكُ الاشعري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قال قال رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ليشربن ناس من امتي الخمر يسمونها بغير اسمها يعزف علي رؤسها بالمغازف والمغنيات يخسف الله بهم الارض ويجعل الله منهم القردة والخنازير . (۲)

**ترجمه:** د حضرت ابومالک اشعري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ څخه روايت دی چې جناب نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې زما دامت څه خلک به د شرابو نوم بدل کړي څکي به يي، او ددوی په وړاندې به د ساز او سرود سره د ښځو سندرې ويل کيږي، الله تعالی به دغه خلک په زمکه ننباسي او د بعضو به صورتونه مسخ کړي شادوګان او خنزيران به ترې جوړ کړي.

۱ : (رواه البيهقي ، سنن ابي داود باب كراهية الغناء والزمر ج۴ ص ۴۳۵)(تفسير روح المعاني ج۱۱ ص ۷۵) تفسير بغوي ج۲ ص ۹۸)

۲ : (رواه ابوداود ص ۳۷۹ ، وابن ماجه باب العقوبات ج۲ ص ۱۳۳۳ ، والبيهقي في شعب الايمان ص۱۲)

## د سندرو ويونکو لمونځ نه قبليږي

د نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حديث مبارک دی؛ وعن ابن مسعود رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ان النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سمع رجلا يتغني من الليل فقال لا صلاة له لا صلاة له. [1]

**ترجمه:** د حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ څخه روايت دی چې نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شپې لخوا د يو سړي څخه سندرې واوريدې چې ويلې يې، دوه ځله نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې دده لمونځ نه قبليږي، دده لمونځ نه قبليږي.

## دوه ملعون آوازونه

د نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حديث مبارک دی؛ حدثنا عمرو بن علي، حدثنا شبيب البجلي، قال سمعت انس ابن مالكُ يقول قال رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صوتان ملعونان في الدنيا والاخرة مزمار عند النغمة ونوحة عند مصيبة. [2]

**ترجمه:** حضرت انس ابن مالک رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ روايت کړی فرمايي چې رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل دوه آوازونه په دنيا او آخرت کې ملعون دي يو د سندرې سره موسيقي، او بل د مصيبت په وخت کې چيغه وهل.

---

۱: (نيل الاوطار)
۲: (مسند البزار ج۲ ص ۳۲۳)، (نيل الاوطار باب مجاء في آلة اللهو ج۸ ص ۱۱۷)

## د سندرو آوریدونکو په غوږونو کې به مس اچول کیږي

د نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ حدیث مبارک دی؛ عن انس رَضِيَ ٱللَّهُ عَنۡهُ ان رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ قال من قعد الي قينة يستمع منها صب الله في اذنيه الانكُ يوم القيامة. (۱)

**ترجمه:** د حضرت انس رَضِيَ ٱللَّهُ عَنۡهُ **څخه** روایت دی چې رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ وفرمایل ځوک چې سندرې ویونکي ډمې ته کیناست چې سندرې ترې واوري الله تعالی به د قیامت په ورځ ددغه انسان په غوږونو کې ګرم مِس واچوي.

## د موسیقۍ څخه بغیر سندرې آوریدل

د سندرو سره چې ساز او موسیقي وي آوریدل یې بلا شک حرام دي، لیکن ترکومه ځایه چې بغیر د ساز څخه سندرې آوریدل او یا پخپله ویل دي که چیرته یو ځوک یوائې ؤو د زړه خوشحالولو لپاره یا دویرې ختمولو لپاره د ساز څخه بغیر سندرې اوري یا یې پخپله وایي ددې ګنجائش شته، مګر د لهو لعب په توګه مجلس جوړول او په هغه کې سندرې ویل او آوریدل شرعا حرام دي اګر که بغیر د ساز څخه هم وي.

---

۱: (رواه ابن صصرى في اماليه وابن عساكر في تاريخه)

اختلفوا في التغني المجرد، قال بعضهم انه حرام مطلقا والاستماع اليه معصية وهو اختيار شيخ الاسلام، ولو سمع بغتة فلا اثم عليه، ومنهم من قال لا باس بان يتغني ليستفيد به نظم القوافي والفصاحة، ومنهم من قال يجوز التغني لدفع الوحشة اذاكان وحده، ولايكون علي سبيل اللهو، واليه مال شمس الائمة السرخسي رحمه الله. (۱)

**ترجمه:** د سازاو موسيقي څخه بغير سندرو کې د مشائخو اقوال مختلف دي، د بعضو قول دادی چې سندرې مطلق حرام دي او ددې آوريدل ګناه ده،او شيخ الاسلام هم دا قول اختيار کړی دی، البته ناڅاپي اوريدونکی ګناهګار نه دی، او د بعضو قول دادی چې په داسې سندرو کې چې موسيقي ورسره نوي څه حرج نشته چې د قافيې او فصاحت لپاره ترې فائده اخلي، او د بعضو قول دادی که په تنهايي کې د ويرې لرې کولو لپاره وي، او د لهو په توګه نوي نو په دې کې څه حرج نشته، او شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ ٱللَّهُ هم همدې طرفته مائل دی. (۲)

## موبايل کې غير اخلاقي زنګونه اچول

**پوښتنه :** نن صبا په موبايلونو کې مختلف قسمه زنګونه (رينګ ټون) او سندرې اچول کيږي چې په هغې کې اکثره سندرې او

۱: (الفتاوی الهندية باب السابع عشر في الغناء ج ۵ص ۳۵۱)
۲: (فتاوی عثمانيه ج ۱۰ ص۳۲۳)

زنګونه غیر اخلاقي وي آیا ددې استعمال شرعا جائز دی.؟

**الجواب: وبالله التوفیق**؛د موسیقي سره سندره شرعا ناجائزه او حرامه ده، ددې آوریدل په زړه کې د نفاق په شان مهلک مرض پیدا کوي ددې وجې څخه موبایل کې د سندرو او غیر اخلاقي زنګونو په ځای ډیر ساده او عادي زنګ اچول په کار دي، د مسلمان د شان سره مناسب نه دي چې هغه دې د داسې ناجائزه کارونو مرتکب شي.

د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روایت دی فرمایي ؛ و عن جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الغناء ینبت النفاق في القلب كما ینبت الماء الزرع یعني الغناء سبب النفاق ومؤد الیه...وقال النووي في الروضة غناء الانسان بمجرد صوته مكروه،وسماعه مكروه،وان كان سماعه من الاجنبیة كان اشدا كراهة.[1]

**ترجمه:** د جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روایت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل موسیقي او سندرې په زړه کې داسې نفاق راپیدا کوي لکه څنګه چې اوبه ګیا (وابښه) راشنه کوي، یعني سندرې د نفاق پیدا کولو سبب او د نفاق طرف ته بلونکي دي امام نووي په کتاب الروضه کې لیکلي دي چې محض د آواز سره سندرې ویل هم

۱: (مرقاة المفاتیح کتاب الاداب الفصل الثالث ج۸ ص **۵۵۷**)

مکروه دي او آوریدل يې هم مکروه دي، اوکه د اجنبۍ ښځې ځخه يې آوري نو بيا ډېر سخت مکروه دي .([1])

## د سندرو ځخه د ځان ساتونکو لپاره زېرې

د نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حديث مبارک دی ؛ عن ابن عباس رَضِيَٱللَّهُعَنْهُ ان النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال اذا كُان يوم القيامة قال الله عزوجل اين الذين يتنزهون اسماعهم وابصارهم عن مزامير الشيطان؟ ميزوهم فيميزوهم في كُتب المسكُ والعنبر ثم يقول للملائكُة اسمعوهم من تسبيحي و تمجيدي فيسمعون بأصوات لم يسمع السامعون مثلها. ([2])

**ترجمه**: د حضرت عبد الله ابن عباس رَضِيَٱللَّهُعَنْهُ ځخه روايت دی چې جناب نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د قيامت په ورځ به الله تعالی پخپله اعلان وکړي ،چيرته دي هغه خلک چې خپل غوږونه او سترګې يې د شيطان د مزاميرو (يعني د سندرغاړو ډمو او ډول باجې ځخه ساتل، فرښتو ته به حکم وشي چې د دوی ډله د دې مجمع ځخه جدا کړئ، فرښتې به دوی جدا کړي او د مشکو او عنبرو په وادي کې به يې کېنوي، بيا به الله تعالی فرښتو ته حکم وکړي چې دوی ته زما تسبيح او تمجيد ور واوروئ نو فرښتې به

---

[1]: (فتاوی عثمانيه ج ۱۰ ص ۳۴۲)

[2]: (اخرجه الديلمي)

په خوش آوازئ سره د رب العزت تسبیح او تمجید ورواوروي چې اوریدونکو به داسې آواز هیڅ کله آوریدلي نوي.

## خپل ځان او اولاد ځنګه وساتو

نن صبا په ځوانانو او پیغلو کې د تلویزون، کمپیوټر، او موبایل له وجې د شهوت جذبه او د جنسي اړیکو نیولو وور په داسې اندازه بل شوی دی چې نن د هغې په لمبو کې ټوله اسلامي جامعه او معاشره سوځي، د عشق او محبت بې حیا قیصې د سړیو او ښځو اختلاط نه بیانیدونکي مجالس او مناظر خپرول د خادم ذهنو ځوانانو او پیغلو جنسي جذبات راپاروي، چې ددې په نتیجه کې بې شعوره نوي نسل بلوغ ته تر رسیدو وړاندې بالغ کیږي، اوددې جنسي جذباتو د کنټرول پرځای د تسکین لپاره داسې غیر فطري لارې چارې خپلوي چې د هغې د لیکلو څخه قلم شرمیږي.

له غیر محرمو ورآخوا د مور او ځوي، خوراو ورور، یا میرنۍ مور وغیره سره د مختلفو ګناهونو د ارتکاب او جرائمو قیصې به تاسو اوریدلي وي.دا هر څه د انټرنیټ ، موبایل، تلویزون او کمپیوټر نتائج دي.

افرین دهغه مور او پلار او ورور په سخت زړه شه چې دا هر څه یې اوریدلي لیدلي وي خو سره له دې بیا هم خپل کور ته د فحاشۍ

دغه مرکزونه راوړي او د خپل فامیل لپاره یې د ساعت تیرئ او دذهن تیزولو سبب بولي، هغه کورته دي د خپل چراغ څخه اور ولګیږي چې دخپل ځیګر په غوښو یې رالوی کړي او بیا هم د داسې قسم فحاشۍ او دښمنۍ اراده وکړي.

قرآن کریم کې الله تعالی علی الاعلان فرمایلي دي یا ایها الذین امنوا قوا انفسکُم واهلیکُم نارا وقودها الناس والحجارة. (١)

ای د ایمان خاوندانو تاسو خپل ځانونه او خپل اهل او عیال د هغه اور څخه وساتۍ چې خوراک یې انسانان او کاڼي دي.

ددې آیت شریف په تفسیر کې **علامه محمود الوسي** رَحِمَهُ ٱللَّهُ دا حدیث شریف لیکلی دی.

روی ابن عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ قال حین نزلت هذه الایة قلنا یا رسول الله نقي انفسنا فکُیف لنا باهلنا فقال علیه الصلاة والسلام تنهوهن عما نهاکُم الله عنه وتامروهن بما امرکُم الله به فیکُون ذلكُ وقایة بینهن وبین النار.

**ترجمه:** حضرت ابن عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ روایت کوي فرمایي چې کله د آیت شریف نازل شو مونږ عرض وکړو چې یا رسول الله مونږ خوخپل ځانونه د دوزخ څخه ساتو خو خپل اهل وعیال څنګه وساتو.؟ نبي کریم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل د کومو کارونو څخه چې تاسو الله تعالی

---

١: (پ ٢ ایت ٢٢)

منع کړي یا ست د هغوی څخه دوی منع کړئ، او د کومو کارونو چې تاسو ته امر شوی دی په هغه کارونو دوی ته امر وکړئ، دا به د دوی لپاره د جهنم څخه د ساتلو سبب وګرځي.

اودحضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تفسیردادی،و اخرج ابن المنذر والحاکم وصححه وجماعة عن علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ انه قال في الأية علموا انفسکم واهلیکم الخیر وادبوهم ، والمراد بالاهل علي ما قیل ما یشتمل الزوجۀ والولد والعبد والامة، واستدل بها علي انه یجب علي الرجل تعلیم ما یجب من الفرائض وتعلیمه لهؤلاء و ادخل بعضهم الاولاد في الانفس لان الولد بعض من ابیه.

**ترجمه:** امام ابن المنذراوامام حاکم د تصحیح سره دیوې ډلې د محدثینو دحضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څخه ددې آیت شریف تفسیر داسې رانقل کړی دی، خپلو ځانونو او خپلو اولادونو ته د خیر تعلیم ورکړئ او هم دیني تربیت ورکړئ او په آیت شریف کې دا هل څخه مراد خپله ښځه، اولاد ، غلام، خادمه، دي ددې آیت شریف څخه په استدلال په ټولو مسلمانانو د فرائضو تعلیم او مذکوره افرادو ته ورښودل واجب دي بعضې حضراتو اولاد په انفس کې داخل کړی دی ځکه چې اولاد هم د پلار یو جز دی.

وفي الحدیث رحم الله رجلا قال یا اهلاه صلاتکم وصیامکم وزکاتکم مسکینکم یتیمکم جیرانکم لعل الله یجمعکم معه في الجنة وقیل ان اشدالناس عذابا

يوم القيامة من جهل اهله. (۱)

**ترجمه**: په حديث شريف کې راځي فرمايي چې په هغه سړي دې الله تعالى رحم وکړي چې **خپل** کوروالـه رابيـداروي او ورتـه وايـي، اى زمـا اهـل وعيالـه د خپلو لمنځونو، روژو او زکـات فکـر وکـړئ، د **خپـل** مسـکين، يتـيم او ګاونـډي، خبـر واخلـئ ښـايي الله تعـالى تاسوهم دهغه سره په جنت کې يو ځاى کړي. ويـل شوي دي چې د قيامت په ورځ به د ټولو څخه سخت عذب د هغه چاوي چې د **خپـل** کور واله يې له دين څخه بې خبره او جاهل ساتلي وي. (۲)

الله جَلَّجَلَالُهُ دې زمـونږ پـه حـال رحـم وکـړي، يقينـا چـې د کـورنىِ د سرپرستانو دغه يو ډير لوى مسؤليت دى ډير خلک ددې مسؤليت څخـه بـې غمـه او بـې فکـره دي او حـال دادى چـې دا زمـونږ شـرعي مسؤليت او وجيبه ده.

الله تعالى دې ما اوجمله مسلمانان دغـې لـوى مسـؤليت تـه متوجه کړي، او ددين په تعليمـاتو مـو مزين او منـور وګرځوي او دداسې قسم فتنو او فحاشيو څخه مودې په **خپل** حفظ او آمان کې وساتي.

آمين

۱: (روح المعاني ج۲۸ ص ۱۳۷)
۲: (احسن الفتاوى ج۸ ص ۲۹۷)

## دنن صبا ځوانان

دا وخت دنیا د نوي پر مختګونو په لړکې یو د بل څخه د وړاندیوالي په موخه شپه اوورځ په ځان یوه کړي ده، کوم قوم چې په دې میدان کې په کومه اندازه مخکې تللی دی په هغه اندازه پرمختللئ بلل کیږي، او کوم قومونه چې په دې میدان کې قدمونه کیږدي او د پرمختلونکو په نقش قدم باندې د تللو کوشش کوي هغوی ته پر مخ تلونکي ملکونه وايي.

دا هر څه ددې دنیا د څو ورځو د عیش او عشرت لپاره دي، ددې ټولو پر مختګونو حاصل فقط دغه دنیا ده ددې څخه وړاندې هیڅ نشته.

که ته د دوی په وړاندې د قرآن او حدیث، اسلامي زده کړې، د قبر زندګي، آخرت ، جنت او د جهنم ذکر وکړې چې دې طرفته هم یو نظر وکړئ، اخرت رایاد کړئ د هغه لپاره تیاری وکړئ د الله تعالی قوت او قدرت ډیر لوی دی، الله تعالی په یوه لحظه کې د پرمختګ دعوه کونکي د خاورو سره خاورې کولې شي، ټولې لوړپوړي ودانۍ او عمارتونه د خاورو سره خاورې کولی شي هغه د ټولو مخلوقاتو خالق او څښتن دی، دې دنیا دهیچا سره وفاء نده کړی خپل پلرونه او نیکونه رایاد کړئ او د هغوئ شان او شوکت رایاد کړئ، او د لویو لویو واکمنو جبابراؤ سلطنتونه رایادکړئ،د

ملک الموت پر وړاندې د هیڅچا هم د وزر ښورولو همت نه وؤ ټول د ځمکې خیټې ته لاړل، د قبر د زندګۍ څخه وروسته د قیامت په ورځ د الله تعالی سره مخامخ کیدل دي ددې لپاره د اوس نه د تیاري حکم دی.

دنن صبا ځوانانو په مخ کې چې دا خبرې وکړې اول خو دا فکر کوي چې ممکن داسې سړی به لیونی وي او یابه یې ذهني توازن برابر نوي آخر څه وجه ده؟ د دنیا کارونه او پرمختګونه یې پریښي بس پنځه وخته جومات ته ځي راځي، د پرتوګ پینځې اوچتې ساتي پرمخ ګیره پریږدي، د حلالو او حرامو خبرې کوي، سود جواري او لاټرې یي پریښي ده او ډیرو لویو لویو ګټو ته حرام وایي لاس یې ترې مینځلی دی، بچي یې د قرآن حفظ او د دیني تعلیم په حاصلولو کې داخل کړي دي کورودانه او بچې یې د پوهنتون، پارک، اوبازار څخه لرې ساتلي دي، پخپله یې ګټي او پخپله سودا هم راوړي د تلویزون ، وي سي آر وغیره تفریحي آلاتو څخه لرې اوسیږي کله یې چې په کوم تصویر یا تلویزون، وي سي آر کې په بربنډه او غیر بربنډه ښځه نظر ولګیږي نظر ترې اړوي او بهروځي د رخصتۍ په ورځو کې پارکونو ته د چکر پرځای د بزرګانو علماؤ د وعظ نصیحت مجلسونو ته ورځي، په ودونو کې مختلف ښه ښه خوراکونه له دې وجې پریږي چې هلته د مردانه او

زنانه ګډ ماحول وي، نو لهذا د نظر ساتل او د ایمان ساتل مشکل کار دی.

د نن صبا ځوانان ددې ټولو خبرو اوریدلو اولیدلو څخه وروسته په دې لاره د تللو، دیني تعلیم حاصولو ، او د رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تابعدارۍ، او د آخرت د فکر پر ځای خپل ځان ته داسې تسلي ورکوي چې یاره دا خو ملا دی، دقیانوس دی د پخواني فکر سړی دی، ملا صاحب پخپل ځای پرېږدئ مونږ پر مختګ کوو، بس په دې طریقه خپل زړه ته اطمینان او تسلي ورکوي،

راځئ د پر مختګ خبره خوراغلي ده، آیا اسلامي تعلیم د دنیوي پر مختګ په وړاندې خنډ دی؟ یا په اسلام کې د نویو اختراعاتو څخه فائده او کار اخیستل، اتومي او ساینسي میدان کې پر مختګ کول، او د اسلام په چوکاټ کې دننه د کفارو څخه د مخکې کیدلو کوشش کول، خپل ملت او وطن ته خدمت کول ممنوع دي.؟

جواب به دا دوي چې هیڅ کله هم نا ،بلکه اسلام مونږ ته دا تعلیم راکوي چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ لطرفه چې مونږ په څه باندې مکلف شوي یو هغوی ته ژمن واوسیږو او د اسلام په چوکاټ کې دننه د خپلو مسلمانانو وروڼو سره همدردي وکړو ،او په حلاله طریقه سره تجارت او زراعت او نور کاروبارو نه خوښ کړو او پر مختک وکړو.

لیکن په دیکې د سود، رشوت، جورای قمار، درواغو، دوکې، چل، خیانت، او یو شی په بل کې له ګډولو څخه ځان وساتو، دا د اسلامي مزاج خلاف کارونه دي، همدارنګه د دین اسلام په خپرولو کې هر نوع قرباني ورکړو که د سر ضرورت ؤو سر ورکړو، که د مال ضرورت وؤ نو مال ورکړو، خپل کردار د یوې نمونې په څیر پرېږدو.

غرض دا چې د جدیدو اختراعاتو څخه فائده حاصلول شرعا ممنوع نده، البته په دیکې چې کومې د شریعت خلاف خبرې دي د هغوی څخه ځان ساتل ضروري دي، د مثال په توګه په دې زمانه کې نوي اختراعات لکه کمپیوټر، موبایل انټرنیټ، ددې پرمټ د دین ښه پوره خدمت کولی شو، لیکن ددې سره سره ډیر لوی نقصانات هم شته.

هغه داسې چې انټرنیټ به خلاص کړي نه به د لمانځه فکر ورسره وي نه د روژې فکر، نه د خوراک فکر، نه د مورپلار د خدمت کولو، او نه د تعلیم کولو بلکه د ټولې دنیا د فحاشی او عریانی په پروګرامونو به زړه خوشحاله کوي.

دا اوس ظاهره خبره ده چې داسي انسان ته د کمپیوټر او موبایل وغیره استعمال په نقصان تمام شو، د دین او دنیا دواړو څخه ؤوتلو، حاصل دا دی د کمپیوټر موبایل او انټرنیټ استعمالولو ته شریعت اجازت وکړی دی، مګر په دیکې تصویرونه ویډیوګانې،

سندرې سازونه او ريدل فحاش فلمونه ليدل او د ډرامو ليدلو اجازت نشته حرام دي، ځکه چې په دې باب کې د قرآن او حديث څخه سخت وعيدونه راغلي دي، ددې وجې څخه هر مسلمان ته په اعتدال کې ژوند کول په کار دي، د الله تعالی د احکامو تابعداي وکړئ، د ضرورت په اندازه دنيا وګټئ او د اخرت لپاره ځان تيار کړئ، الله جَلَّجَلَالُهُ دې مونږ ټولو ته توفيق راکړي. آمين

**مولانا مفتي احسان الله شائق صاحب .**

## خپل خواهشات ددين تابع کړئ

ترڅو چې خواهشات ددين تابع نوي تر هغې پورې سړی کامل مؤمن نه شي جوړيدلی د نبي کريم صَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ حديث مبارک دی.

عن ابي محمد عبدالله بن عمروبن العاص رَضِيَٱللَّهُعَنۡهُمَا قال قال رسول الله صَلَّىٱللَّهُعَلَيۡهِوَسَلَّمَ لا يؤمن احدكم حتي يكون هواه تبعا لما جئت به. (١)

**ترجمه:** د حضرت عبد الله ابن عمروبن العاص رَضِيَٱللَّهُعَنۡهُمَا څخه روايت دی چې رسول الله رَضِيَٱللَّهُعَنۡهُ وفرمايل ستاسو څخه يوهم ترهغه وخت پورې کامل مؤمن ندی ترڅو چې دده خواهشات زما د راوړليو طريقو تابع نه وي. (٢)

١ : (حديث صحيح)
٢ : (مشکوٰة المصابيح باب الاعتصام بالکتاب والسنة ص ٣٠)

په نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې د ايمان راوړلو څخه وروسته د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ژوندګۍ متعلق ښودل شوی طرزالعمل او د الله تعالی د بندګۍ لار خپلول ضروري دي، نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې په څه باندې حکم کړی دی اګر که په هغه باندې عمل کول به زړه نه غواړي ليکن په هغه باندې عمل کول ضروري دي، نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې د څه شي څخه منع کړيده که د هغه کار پريښودل د نفسي تقاضی خلاف هم وي د هغه کار څخه منع کيدل ضروري دي، او خپل نفسي خواهشات دنبوي ارشاداتو تابع ګرځول د هر مؤمن فريضه ده.

حضرت عباده بن صامت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په دې باندې بيعت کړی دی چې ستا څخه چې څه اورو مونږ به يې منو هغه که تنګ دستي وي او که فراخي وي، که زمونږ زړه يې غواړي او که نه يې غواړي. (۱)

## شريعت دې طبيعت ثاني جوړ شي

د سردار عالم فخرآدم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذات اقدس مبارک د مؤمنانو لپاره د عمل نمونه ده، د ژوند په ټولو شعبو کې د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتباع لازمه ده ، او د الله تعالی کوم بنده ګان چې د نبي

۱: (مشکوٰة کتاب الامارة والقضاء ص ۳۱۹)

کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ډیر محبت کوي نو شریعت مطهره د هغوی طبیعت ثاني جوړشي او داسې درجې ته ورسیږي چې دده نفس هم هغه څه غواړي کوم څه چې شریعت مطهره کول غواړي.

د کامل ایمان درجه اوډیر اوچت مقام چې د هغې طرف ته په احادیثو مبارکه ؤ کې رهبري شوي ده په حقیقت کې قابل د تحصیل دی، که د چا نفس سرکشي کوله او د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په طریقو باندې له تللو څخه يې ځان خطا کولو هغه دې نفس ته تمرین ورکړي، د علماؤ مشایخو څخه دې په دې سلسله کې رهبري حاصله کړي خپل نفس او خواهشات دې د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د طریقو پابند اوتابع وګرځوي ددې کار په شروع کې به نفس ډیر درته متوجه وي لیکن بالاخره به نفس مغلوب شي او قرار قرار به يې خراب خواهشات ختم شي او نفس به هم هغه څه غواړي کوم چې د دین محمدي لار ښودنې دي. (۱)

## په دنیا کې د ژوند کولو مثال

د انسان امیدونو او حرص ته په کتو داسې فکر کیږي چې ګواکې انسان به په دنیا کې ډیر وخت پاتې کیږي خو حقیقت داسې نه دی بلکه د دنیا ژوند سره باید هغه چلند وشي د کوم ژوند کولو چې

۱: (شرح اربعین النووي ص ۳۱۱)

نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته لار ښوونه کړیده.

**عن ابن عمر** رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا **قال اخذ رسول الله** صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ **بمنكبي فقال كُن في الدنيا كأنكُ غريب او عابر سبيل، وكان ابن عمر يقول اذا امسيت فلا تنتظر الصباح واذا اصبحت فلا تنتظر المساء وخذ من صحتكُ لمرضكُ ومن حياتكُ لموتكُ.** (١)

**ترجمه:** حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا فرمایي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما اوګه ونیوله ویې فرمایل چې په دنیا کې داسې وه اوسیږه لکه ته چې مسافر وې ،او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به فرمایل چې دنیا داسې بې ثباته شی وبولئ چې کله ماښام شي د سهار انتظار مکوئ، او چې کله سهار شي د ماښام انتظار مه کوئ، د صحت په زمانه کې د مرض زمانې لپاره عمل او عبادت وکړه، او د ټول ژوند په زمانه کې د مرګ لپاره عمل او عبادت وکړه.

**تشریح:** دا حدیث مبارک د ایمان خاوندانو لپاره یو جامع نصیحت دی په دیکې د دنیا بې ثباتۍ طرفته توجه شوې ده، او مؤمن په دنیا کې د مسافر په شان بلکه ددې څخه هم وروړاندې دیو لاروي په څیر د ژوند کولو ښودنه شوی ده، د مؤمن اصلي وطن جنت دی په کار ده چې د جنت لپاره کوشش وکړي، او د هغه لپاره ګټه وکړي

١: (رواه البخاي باب قول النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کن في الدنیا الخ ج٢ ص ٩٤٩)

او ذخیره یې کړي، مسافرپه بل وطن کې نه کور جوړوي نه مال او متاع جمع کوي، او نه هلته زړه لګوي دئ هر وخت په دا فکر وي چې تر ټولو زیا ته ګټه وکړم او وطن ته یې ولیږم او روسته زه هم ورپسې لاړشم.

او د لاروي حالت خود مسافر څخه هم کم وي ځکه چې مسافر خو خپل کلی پرېښې وي او بل ځای ته رسیدلی وي هلته سرائ او مسافرخانه کې پاتې کیږي او آرام هم کوي، لیکن دلاروي لپاره د لارې لنډول مقصد وي د هغه لپاره چا پسې وروسته کتل اویا لرې خبرې کول او دریدل هم په فکر کې نه وي، هغه به په یوځای کې د آرام کولو خوراک څښاک، جامو بدلولو نام هم په خوله وانخلي ترڅو چې خپل منزل مقصود ته رسیدلی نوی، بلکل همدارنګه په دې دنیا کې باید ځان مسافر وګڼو، دمؤمنو بنده ګانو لپاره د ډیر مال او متاع او سامان او لوړ پوړو ودانیو جوړولو څخه پرهیز پکار دی، چیرته چې یو څو ورځې په شمیر اوسیدل وي هغه چې هر څنګه وي تیریږي، مګر چیرته چې د همیشه لپاره اوسیدل دي د هغې لپاره ګټه کول او هلته یې لیږل لازمي دي. وماتقدموا لانفسکم من خیر تجدوه عندالله. (۱)

۱: (سورت بقره ایت ۱۱۰)

## د امر بالمعروف او نهي عن المنکر حکم او په ترک يې وعيدونه

امر بالمعروف او نهي عن المنکر د هر نارينه او ښځينه وجيبه ده کله چې هر فرد د جامعې دغه مسؤليت درک او آداکړي نو يو طرفته به يې الهي مسؤليت آداکړی وي او بل طرفته به په جامعه کې خود بخود اصلاحات رامينځ ته کيږي، اوکه ددې بالعکس دغه مسؤليت ته د مسؤليت په نظر ونه کتل شي او دغه کار زمونږ مسلمانان پريږدي يو طرفته به الله تعالى ته مسؤل او تر وعيدونو لاندې وي بل طرفته به په جامعه کې فساد ډير شي چې د هغې په نتيجه کې به ډيرې ناخوالې او بدبختۍ رامينځ ته شي، او پخپله به هم د هغو ښکار شو.

الله تبارک وتعالى په قرآن کريم کې فرمايي: کُنتم خير امة اخرجت للناس تأمرون بالمروف وتنهون عن المنكُر وتؤمنون بالله .(۱)

**ترجمه:** تاسې يې غوره په ټولو امتونوکې چې راوليږلی شوئ په عالم کې امرکوئ په ښو کارونو باندې او منع کوئ د بدوکارونو څخه او ايمان راوړئ په الله تعالى باندې .(۲)

په دې آيت شريف کې دې امت ته دلا بهتر امت لقب ورکړل شوی

۱: (سورت آل عمران ايت ۱۱۰)
۲: (معارف القران)

دی، او ددې سره يې د امت مسلمه يو خاص صفت هم بيان کړی دی چې هغه د امر بالمعروف او نهي عن المنکر کول دی، او دغه کار ددې امت يو خاص امتياز دی، او دغه کار په يوه خصوصي طريقه باندې کول ضروري دي،دا يو مستقل کار دی، ددين دنورو کارونو په څير يې ترسره کول دامت کلکه زمواري ده، په دې آيت شريف کې هر مسلمان ته د منکر او ګناه څخه د منع کولو مسؤليت ورسپارل شوی دی، او د مسلمانانو دافکر کول چې ګواکې د منکر څخه منع کول په نيکيو باندې امر کول به د عالمانو واعظينو يا د تنخوا دارو مبلغينو کاروي دا غير صحيح او ډيره غلطه خبره ده.

الله تبارک وتعالی دمؤمنانو خاص صفتونه د قرآن کريم په بل ځای کې داسې بيان کړي دي والمؤمنون والمؤمنات بعضهم اولياء بعض يأمرون بالمعروف وينهون عن المنكر ويقيمون الصلاة ويؤتون الزكاة و يطيعون الله ورسوله اولئكُ سيرحمهم الله.(۱)

**ترجمه:** او ايماندار سړي او ايمانداري ښځې يو دبل همکاران دي امر کوي په ښو کارونو باندې او منع کوي له بدوکارونو څخه او قائموي لمونځ او ورکوي زکات او اطاعت کوي د حکم د الله تعالی او د هغه د رسول صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ همدغه خلک دي چې رحم پرې کوي

۱: (سورت توبه : ايت ۱۷)

الله تعالی. (۱)

په دې صورت کې د مؤمنانو صفات بیان شوي دي ددې آیت مبارک څخه دا معلومه شوه چې امربالمعروف او نهي عن المنکر د مؤمنانو خلکو یو خصوصي صفت دی چې ددوی د ځان سره پیوست دی، چې مؤمن وي او امربالمعروف اونهي عن المنکردغه مهمه فریضه نه آدا کوي دا خبره د ایماندارو د تصور څخه لرې ده.

د مؤمن په حیث په هر مسلمان نر او ښځه باندې دغه وظیفه لازمه ده، خصوصا په دی وخت کې چې په ظاهره او په خپلو سترګو ورته ګورو د الله تعالی د احکامو نافرماني کیږي، نو د خپل طاقت اوقوت په اندازه د ګناهونو له منځه وړل د هر مؤمن سړي او ښځې ډیر مهم مسؤلیت دی، ددې وجې څخه نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي عن ابي سعيد الخدري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قال سمعت رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقول من راى منكُم منكُرا فليغيره بيده فان لم يستطع فبلسانه فان لم يستطع فبقلبه وذلكُ اضعف الايمان.(۲)

**ترجمه:** حضرت ابوسعید الخدري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې ما د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه واوریدل چې فرمایل یې که له تاسو څخه یو

۱: (معارف القران)
۲: (رواه مسلم باب کون النهي عن المنکر من الایمان ج۱ ص **۵۱**)

چا غیر شرعي کار ولید نو هغه په خپل لاس سره بدل کړئ، او که په لاس سره د بدلولو طاقت مونه ؤو نو په ژبه سره یې بدل کړئ او که دغه طاقت مو هم نه ؤو نو په زړه سره یې بدل کړئ دا د ایمان ترټولو کمزوري درجه ده.

شریعت اسلامي سراسر د خیرخواهئ خوبئ او نیکۍ نوم دی، د بدو کارونو په اسلام کې یوه ذره قدرې هم برداشت نشته، الله تبارک وتعالی چې چیرته دې امت لپاره د نیکیو کولو او د بدیو څخه د خپل ځان ساتلو حکم کړی دی ، همدارنګه یې د نورو لپاره د نیکیو د خپرولو اوله بدیو څخه د منع کولو مسؤلیت هم ورسپارلی دی.

## د عامو مسلمانانو ورونړو څخه غوښتنه

تردې دمه بنده په څو کرښو کې د موبایل او انټرنیټ وغیره منفي ضررونه او نقصانات یو څه اندازه ستاسو خدمت ته عرض کړل، چې له هغوی څخه دومره خبره واضحه شوه چې که مونږ د پوره احتیاط سره ددې استعمال ونکړو یقینا مونږ به داسې تباه کړي چې په دنیا او آخرت دواړه ځایه به مونږ ناکام شو.

اوس زه د ټولو دیني ورونړو اوخویندو څخه دا غوښتنه کوم چې که مونږ د خپل پیدا ایښت مقصد په نظرکې وساتو آخرت رایاد کړو او

د الله تعالی په وړاندې د حاضرۍ فکر وکړو چې دا مستعاره زندګي مونږ څنګه تیره کړه؟ دا وخت مو چیرته مصرف کړو؟ د دې سوالونو جواب به مونږ خامخا ورکوو، مونږ باید دا خبرې په ذهن کې راولو ترڅو مو د زندګۍ رخ سمې لارې طرفته برابر شي، او د الله تعالی د نافرمانۍ څخه وساتل شو، او د الله تعالی راکړل شوي نعمتونه په سمه توګه استعمال کړو، او د الله تعالی پیداکړل شوو شیانو څخه د هغه په مقررو حدودو کې د ننه فائده واخلو.

خصوصا د دې خبرې ډیر خیال وساتئ چې د موبایل او انټرنیټ بلکل بې ځایه او بې موقع استعمال ونکړئ، ځکه چې که یو طرفته مو آخرت خرابوي بل طرفته پدې وطن کې د ننه یې مسلمانان په ډیرو مشکلاتو کې اچولي دي چې د هغو ذکر بعضو علماء کرامو کړی دی، په دې سلسله کې مو د مسلمه امت ځوانانو څخه خصوصي د پوره احتیاط غوښتنه ده، په یاد ولرئ هسې نه چې زمونږ ستاسو د لږې بې پروایۍ په وجه امت په لوی مصیبت او فتنه کې پریوځي، الله تبارک وتعالی دې زمونږ ستاسو حفاظت وکړي. آمین ثم آمین

(مولانا مفتي محمد مرشد قاسمي هندي غفرله الباري)

## د علماء کرامو څخه غوښتنه

یقینا د علماء کرامو څخه غوښتنه کول د (**وړه خوله او غټې خبرې**) دا مقوله مې په ذهن کې ډیره ډیره راځي لیکن زمونږ د هم جنس او ورور ولۍ په دې خلکو کې هم چې په کومه اندازه ددې شیانو په استعمال کې بې احتیاطي لیدل کیږي ددې وجې څخه بیا بیا په فکر کې راځي چې په ډیر معذرت سره د امت د رهنمایانو څخه هم یو څه غوښتنه وکړم، امید لرم چې دا علماء کرام به د ناچیز بنده کوتاهي او بې ادبي معاف کړي.

علماء کرام حضرات د انبیاؤ علیهم الصلاة والسلام وارثان دي، او دا خبره د حدیث شریف څخه هم ثابته ده چې د انبیاؤ علیهم السلام میراث دینار او درهم ندي، بلکه علم دین دی، کوم چې علماء کرامو حاصل کړی دی، اوس علماء کرامو حضراتو ته د انبیاؤ علیهم السلام صحیح وارث هغه وخت ویلي شو یا هغه وخت د ویلو مستحق دي څه وخت چې علماء کرام د انبیاؤ علیهم السلام تګلاره پرمخ بوځي او هغه ډیره عظیم الشان تګلاره ده څرنګه چې د الله تعالی د تشریعي نظام څخه معلومه ده ، د ټولو انبیاؤ علیهم السلام واحد مقصد ددې تشریعي نظام په امت کې افهام او تفهیم ؤو ، انسان چې په دنیا کې اوسیږي د الله تعالی د ټولو پیدا کړل

شو يو شيانو څخه به منتفع کيږي خو الله تعالی چې کوم حدود او قيود متعين کړي دي د هغوی به پوره مکمل لحاظ کوي. د هغوی څخه د تجاوز او انحراف هيڅ د جواز وجه نشته. په ظاهره که نقصان او خساره په نظر راځي يا هر څه چې کيږي مګر د الله تعالی جوړ کړی قانون او متعين کړي حدودو څخه په هيڅ صورت خلاف ورزي نده په کار بلکه ددې په خلاف فکر کول هم بايد

ونه شي، دغه د هغه تشريعي نظام د افهام او تفهيم مسؤليت ؤو چې انبياء کرامو عليهم السلام ادا کړ او د دنيا څخه يې رحلت وکړ.

اوس دا عظيم الشان مسؤليت د علماؤ د مبارک جماعت د هر فرد فرد مسؤليت دی چې دغه مسؤليت په مخ بوځي او امت ته دا وښيي چې مونږ په دې کائنات کې چې اوسيږو ددې د شيانو څخه به فائده اخلو مګر ددې طريقه به دا وي کومه چې الله تعالی بيان کړيد ده، د هغې مطابق به مونږ خپل ژوند تيروؤ.

تاسو لګ سوچ او فکر وکړئ چې علماء کرامو دغه تشريعي نظام په مدرسو کې زده کړ او د انبياء کرامو وراثت يې حاصل کړ اوس که هغوي ددې مسؤليت څخه کيني او په فضول اوبې کاره شيانو خپل قيمتي وخت مصرف کړي، ددې عظيم مسؤليت څخه غافل شي، او ددې احساس د خپل وجدان څخه ختم کړي چې مونږ به د

انبیاء کرامو تګلاره پرمخ بیایو، نودا ځومره دافسوس خبره ده.

بس دعلماءکراموحضراتو څخه په ډیرنهایت آدب اوحترام سره دا غوښتنه لرو چې که مونږ دخپل مقصداوتګلارې متعلق احساس پیدا کړو او د خپل مسؤلیت متعلق لګ سوچ او فکر وکړو ان شاء الله چې مونږ به په ډیره آسانۍ سره دانټرنیټ،فیسبوک، واټساپ د فضولیاتو څخه بچ کیږو، زمونږ وخت به محفوظ او په دیني کارونو کې ولګیږي، او الله تعالی به زمونږ په واسطه ډیرو خلکو ته فائده ورسوي، مونږ به بلې ډیوې شو چې د هغې څخه به د همیشه لپاره امت ته د خیر رڼا رسیږي.

(مولانا مفتي محمد مرشد قاسمي هندي غفرله البأري)

## د طلبه ء کرامو څخه غوښتنه

زما ډیرو معززوطلباءکرامو!

څرنګه چې تاسو د مختلفو مناطقو علاقو څخه اسلامي مدارسو او اسلامي مراکزو ته د الله تعالی ددین د زدکړې په خاطر راجمع شوي یاست، بلکه الله تعالی راجمع کړي یاست، که تاسو فکر وکړئ چې په څومره لوړ تعداد د امت وړو بچیانو مکتبونو او لیسوته مخه کړي ده ( الله تعالی دې ددوی ددین او ایمان حفاظت وکړي) نو په وړو کې د مالګې په څیر ډیر لګ تعداد دی چې د الله

تعالی د دین زدکړې لپاره په دیني مدرسو کې داخله اخلي، یا به دا وواېو چې دا الله تعالی محض پخپل فضل او کرم سره ددوی انتخاب کړی دی.

ګورئ طلباء کرمو! ستاسو په اوګو ډیر لوی لوی مسؤلیتونه راروان دي، ستاسو د هر یو لپاره نه پوهیږم د څومره کلیو او علاقو فکر په کار دی، د دوی لپاره دیني او ملي فکر کول په کار دی، د دوی د زړونو څخه بې دیني ختمول او د حق لارې ته راوستل په کار دی، نن صبا امت دبې غمۍ په خوب اوده دی، د دوی داحوال پرسۍ څوک نشته، دامت تنده ستاسو په انتظار ده، تاسو هغه خلک یاست چې ددې امت تنده به سرابوئ، نن امت په قسماقسم فتنو مصائبو او دردونو کې مبتلا دی، هره لحظه فتنې دي او فتنې دي، هره راتلونکي فتنه د اولې څخه لویه وي، په داسې وخت کې د امت همدردي کونکي صرف تاسو یاست، تاسو په مستقبل کې د امت تر ټولو قیمتي سرمایه یاست، تاسو ډیر لوړ مقصد سره مدرسو ته راغلي یاست، خپل مورپلار، وروڼو او خور، دوستان او ملګري مو پریښي دي صرف ددې لپاره چې اول پخپله د ځان اصلاح وکړئ، او بیا د نورو د اصلاح فکر وکړئ.

تاسو لګ فکر وکړئ دکوم شي چې مقصد دومره لوړ وي او هم د

هغې مسؤلیت دومره اهم او وسیع وي، او د کار میدان یې هم دومره اوږد او عریض وي، د داسې مقصد او هدف حاصلولو لپاره به په کومه اندازه کوشش کول په کار وي، اوخپل ځان به په کومه درجه تیارول ورته په کار دي ، او خپل کار د څومره خیال سره ترسره کول په کار دي.

آیا که مونږ د موبایل او انټرنیټ استعمال ته کار ووایو، د ملګرو سره په رسائلو لیګلو، ګپ شپ، فیس بوک، او واټساپ کې مصروف وو او خپل محبوب مو ګرځولی وي، په دې کې سیرکو، خندا او ټوقی خپل عادت جوړ کړو، او همداسې په نورو لغویاتو فضولیاتو کې ورننوځو نو بیا مونږ دومره عظیم مقصد حاصلولې شو؟ آیا مونږ دامت رهنمایي کولې شو؟ آیا مونږ د دوی په زخم ملهم لګولي شوِ؟ آیا مونږ د دوی په یو قسم خدمت لپاره ځان تیارولی شو؟ ناهیڅ کله هم نا، که چیرته مونږ خپل مقصد ته رسیدل غواړو، د ژوند هدف حاصلول غواړو نو تر ټولو د مخه په تعلیمي زندګۍ کې مونږ باید په خپل جیب کې موجود دښمن راوباسو او بهر یې وغورځوو، د هغه سره دښمني وکړو هغه خپل دښمن وګڼو او په دې خبره یقین هم وکړو، نن صبا د طلباؤ لپاره د انټرنیټ او موبایل څخه بل مضر شې نشته، د طلباؤ اخلاقي کردار

ته يې وور ورته کړی دی، طلباء يې د لوړو مقاصدو څخه ډير لرې کړې دي، نن دعامو طلباؤ په ذهن کې هيڅ مقصد ندی پاتې او هيڅ هدف ندي پاتې، بس دوی په داسې طريقه سبق ته ورځي لکه محض چې په رسمي توګه څوک حاضري ورکوي.

دغه علمي مقصد ته درسيدو لپاره د مدارسو مهتمين او ناظمان حضرات بايد داسې شرائط وضع کړي چې د طالب العلم څخه موبايل وصول کړي فقط په هفته کې يوه ورځ د خپلې کورنۍ سره د احوال پرسۍ په موخه اړيکه ونيسي، اميد دی چې ان شاء الله د طلباء کرامو علمي استعداد به لوړ او ترقي وکړي، او د دغه تجويز څخه به ډير ښه نتائج ترلاسه کړو.

(مولانا مفتي محمد مرشد قاسمي هندي غفرله البأري)

**تمت بالخير بعون الله**

**يوم الثلاثاء--- ۱۴۴۰/۸/۱۰هجري، موافق ۲۰۱۹/۴/۱۶عيسوي**

❁❁❁

❁❁

❁

# تقريظ

## شيخ القرآن والحديث اوستاذ العلماء

## مولانا محمد ادريس صاحب چارسدوي مدظله العالي

### استاذ الاحاديث بدارالعلوم حقانيه اكوړه خټک

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

قال النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لعن الله المصورين . (الحديث)

محترم حضرت مولانا محمد رضا رحماني صاحب د حالات حاضره يوه عظيمه فتنه په ګوته کړي ده، او په دلائلو يې د هغې فتنې وضاحت کړی دی؛او د بطلان دلائل يې د فقهائ کرامو د حوالو په رڼا کې په سليس او عام فهم انداز د کتاب په شکل کې ليکلي دي.

لهذا ددې وخت تقاضا داده چې عوام الناس او خواص د موبايل او د نيټ د غلط استعمال څخه ځان وساتي، او موجوده نسل او راتلونکی نسل د دغې لويې فتنې څخه محفوظ شي .

دا څو الفاظ مې ډير په عجلت وليکل الله تعالى دې د فاضل مؤلف کتاب مقبول وګرځوي. آمين

فقط

**محمد ادريس عفي عنه**

# تقریظ

## شیخ القرآن والحدیث حضرت علامه مولانا واولانا

## محمد شریف حقاني مدظله العالي

### خادم الاحادیث بجامعه الفاروقیه خیرآباد

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ○

الحمد لله الذي كرم بني ادم وكرمهم عنده اتقاهم، وحرم لهو الحديث والفحواحش ما ظهر منها وما بطن اي حرم لهم، والصلاة والسلام على من امره الله لمحق المزامير والأوتار والصليب وامر الجاهليه، وقال استماع الملاهي معصية والجلوس علها فسق والتلذذ بها كُفر اى خارج عن الملة، وعلى آله واصحابه ومن دعا بدعوته إلى يوم القيامة.

وبعد: از قرآن کریم وحدیث نبی اکرم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّم ومطالعه کتب تاریخ معلوم میشود که انسان زمانیکه ازوحی الٰهی بی نیاز شده است وبر عقل وفهم خود مغرور گشته است اکثر وبیشتر درتقضای فطری خویش شکار افراط وتفریط شده است، ونه تنها که دردرکِ راه صواب ناکام مانده است بلکه نفس پرستی ومادی گرائی وآزادی خلاف شرع رابرگزیده اشرف المخلوقات بودنش را زیرپاکرده حیوان صفت زندگی کرده است، واین سخن بداهة ثابت است که تکمیل خواهشات فطری وشهوی بدون آزادی بهیمی وگرم شدن بازار ظلم وجور، فحاشی وعریانی، غارت گری، آمدی حرام، سنگدلی وشقاوت، ودروغ وفریبکاری ممکن نیست، واینگونه زندگی از نظر اسلام غیر معقول بوده سبب نارضایتی پروردگار وخالق عالم میگردد۔ الله تبارک وتعالیٰ این قسم مرد

راجانور بلکه ازان بدتر گفته میفرماید: والذین کفروا یتمتعون ویاکلون کما تاکل الانعام والنار مثوی لهم۔ (محمد: ۱۲)

ترجمه: وآنانیکه کافر شدند بهره ونفع میگیرند ومیخورند چنانچه میخورد چهارپایان وآتش جای ایشانست؛ ونیز میفرماید: اولئك كالانعام بل هم اضل ۔۔۔۔

ترجمه: ایشان مانند چهارپایان اند بلکه ایشان گمراه تراند، ایشانند بی خبران۔ این راهم باید واضح کرد که اسلام هیچگاه به احتراز کامل از دنیا حکم نداده بلکه فایده گرفتن از دنیار راحسب ضرورت وحاجت مباح کرده است، اللہ تعالی میفرماید: هو الذی خلق لکم ما فی الارض جمیعا (بقره: ۲۹)

ترجمه: اللہ آنست که بیافرید برای شما هرچه درزمین است همه را۔

ونیز میفرماید: وذکروا نعمت الله علیکم (مائده: ۷)

ترجمه: ویاد کنید نعمت خدارا بر خویش۔

ونیز میفرماید: وان تعدوا نعمت الله لا تحصوها (نحل: ۱۸)

ترجمه: واگر بشمارید نعمت خدارا احاطه نکنید آنرا۔

ازجمله نعمتها تفریحات تعمیری نیز است، تفریحات دوقسم است، تفریحات تعمیری وتفریحات تخریبی۔ تفریحات تعمیری آنست: که انسان گاهی گاهی خودرا بامور مباحه آسایش وراحت دهد۔

چنانچه جلال الدین عبدالرحمن بن ابی بکر السیوطی رحمۃ اللہ علیہ در الجامع الصغیر من حدیث البشیر باب حرف الرا ۴۳۸۱:۱، عن انس رضی اللہ عنہ روایت کرده است: روحوا القلوب ساعة فساعة۔

ترجمه: آسایش وراحت کنید دلهار گاهی گاهی، یعنی راحت نمائید دلهارابعض اوقات ازتکلیف عبادت، به چیزی مباحیکه عذاب وثواب دران نباشد۔

حسین بن مسعود بغوی رحمۃ اللہ علیہ درشرح السنة جلد ۱۳ ص ۱۸۴ آورده است وقال علی بن ابی طالب رضي الله عنه اجموا هذه القلوب . فانها تمل. كما تمل الابدان.

ترجمه: گفته است آسایش دهید این دلهارا، زیرا آنها دلتنگ ونا آرام میشوند، چنانچه که خسته ورنجور میشوند بدنها۔

یعنی تفریحات تعمیری درشرع مباح بوده گنجایش دارد مثلا ورزش وبازی حق برای صحت وتندرستی بدن، یاخوش طبعی وسخن خنده آور ومسابقه دویدن، برای خورسندی ودور کرن خستگی بشرطیکه دروغ ومنکر نباشد، شناوری، وشعر خواندن برای خورسندی یا فصاحت وبلاغت، اسب سواری، نیزه بازی، نشان زدن، وغیره لعب ومزاح مباحه، اگربنیت جهاد وضرورت دینی باشد ثواب نیز میشود بشرطیکه دران آنقدر غلو نشود که امور ضروری مختل ویاترک گردد۔

عن ابی ہریرة رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ أن رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال كل شئ من لهو الدنيا باطل الا ثلاثة انتضالك بقوسك وتأديبك فرسك وملاعبتک أهلك فانها من الحق. (مستدرك ، كتاب الجهاد ج۲ ص ۱۰۴) شرط مسلم.

ترجمه: ازابي هریره رضی الله عنه روایت است که نبی اکرم صلی الله علیه وسلم فرمودند هر چیزی ازبازی ومشغولیت دنیا باطل است مگر سه بازی، تیر اندازی کردنت باکمانت، وادب دادنت به اسپت، وبازی وشوخی کردنت باهلت، واینها ازجمله بازیهای حق اند۔

درجامع الصغیر ، باب حرف الرا جلد ا ص ۴۳۸ روایت است. وذكر عند المصطفى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ القرآن والشعر ، فجاء ابوبكر فقال اقرا شعر؟ فقال نعم ساعة هذا وساعة ذاك.

ترجمہ: بنزد نبی اکرم ﷺ فرمودند بلی گاهی این و گاهی آن یعنی گاهی تلاوت و عبادت و گاهی شعر حسن و خوش طبعی۔

عن انس بن مالكُ قال ان كُان النبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال ياذا الاذنين ، قال محمود قال ابواسامه يعنى مازحه ۔ (شمائل ترمذی ، باب ماجاء فی صفة مزاح رسول الله صلى الله عليه وسلم (۲۳۹)

ترجمہ: ازانس رضی اللہ عنہ روایت است کہ گفت نبی اکرم ﷺ فرمودند ای صاحب دو گوش محمود۔(راوی حدیث) گفت ابو اسامہ (استادش) گفت یعنی نبی اکرم ﷺ مزاح و خوش طبعی کردند با آن۔

واگر انسان نعمت اللہ تعالی را تغییر میدہد مثلا حلال را حرام و حرام را حلال میگردند و یا مرتکب لعب و مزاح منکر میشود، اللہ تعالیٰ آنرا شدید عذاب مینماید۔

اللہ عزوجل میفرماید: ومن يبدل نعمة الله من بعد ما جائته فان الله شديد العقاب. (بقره: ۲۱۱)

ترجمہ: وہر کہ بدل کند نعمت خدا را پس از آنکہ بیاید بوی یعنی کفر پیش گیرد تا نعمت مفقود گردد، پس ہر آئنہ خدا سخت عقوبت کنندہ است۔

عن اسماء سمعت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقول ان الله لا يحب كُل فاحش متفحش. (مسند احمد جلد ۵ ص ۲۰۲)

از اسامه رضی الله عنه روایت است که گفت شنیدم از نبی اکرم صلی الله علیه وسلم که فرمودند الله تعالیٰ دوست ندارد هر فحش گوینده (یعنی گوینده سخن و فعل کننده کاری که ازاندازه شرعی بگزرد وقبیح گردد) وهر تکلف کننده بسیار فحش گورا، یعنی گوینده سخن قبیح رادوست ندارد۔

تفریحات تخریبی: آن تفریحاتیست که برای فرد یاجامعه یادین واخلاق مضراست لهذااسلام آنرااجازه نمی دهد، مثلاانسانی برای تفریح طبع خود حیوانی راهدف تیر قرار دهد، یاآنراتعذیب نماید چون بنگاند، بسته کرده مزمین کش کند، در قفس انداخته درآب ودانه اش کوتاهی شو، وغیره یاافیون، چرس وشراط ودیگراشیاء نشه آوریکه دراسلام قطعی حرام است استعمال کند، یا قماروشطرنج وغیره بزی های خلاف اصول اسلامی رامرتکب شود، یا کتبی رامطالعه کند تاازان کفروالحاد بیاموزد، یاازان به فحش، بیهوده گوئی وجرائم رغیب گردد، خواندن شعرهای قبیح ومذموم، ویابیهوده وقت راضایع کردن، گرچه همه امور مذکوره رابقصد تفریح هم اجام دهد حرام است۔

وازحمله تفریحات تخریبی رقص، سرود، غناء غیر مباح، انواع موسیقی، عکس گرفتن بدون ضرورت اشد، ومجسمه ساختن نیزاست، خواه دیدن وشنیدن رقص، غناء غیر مباح وموسیقی درمبائل باشد درانترنیت ویادرآله دیگری، ویابمردم مجلس دائرکرده خود بخواندیاکسی دیگرمرد باشدیازن، وهمچنان عکاسی درمبائل باشدیادرکامره وغیره، بقصد تفریح باشدیایاد گاری۔

گرچه مردم بیخبر ازاسلام ویامحبوس دردام هوی وهوس وشیطان، دربین تفریحات دربین تفریحات فرق نکرده همه راتفریح مفید بانسان میداننداند لیکن واقعیت امر اینست که تفریحات تخریبی برای فرد، جامعه ودین سخت مضرومخالف تعلیمات بنیادی اسلام بوده حرام است۔

الله عزوجل میفرماید: ومن الناس من یشتری لهوالحدیث لیضل عن سبیل الله بغیر علم ویتخذها اولئكُ لهم عذاب مهین. (لقمان:٦)

وازمردمان کسی هست که میخرند سخن بیهوده راتا گمراه کند مردم را ازراه خدا بغیر علم وتمسخر میگیر درراه خدا راااین جماعت ایشان راست عذاب خوار کننده۔

عن ابن عباس رضي الله عنه فی هذه الایة (من یشتری لهو الحدیث) قال نزلت فی الغناء واشباهه. (السنن الکُبری للبیهقی، باب ماجاء فی ذم الملاهی من المعازف والمزامیر ونحوها جلد ١٠ ص ٢٢١)

ترجمه: از ابن عباس رضی الله عنه روایت اس که در تفسیر این آیت (من یشتری لهوالحدیث) گفت نازل شده است در غناء واشباه آن۔

عن جابر رضی الله عنه فی قوله... قال هو الغناء والاستماع له ولهو الحدیث علی ما روی عن الحسن کُل ما شغلكُ عن عبادة الله تعالی وذکُره من السمر والاضاحیكُ والخرافات والغناء ونحوها. (روح المعانی، سورة لقمان ١١، ٦٦)

ترجمه: ولهوالحدیث بنابر روایت حسن بصری رحمة الله علیه هر آن چیز است که مشغول کند ترا از عبادت الله تعالٰی وذکر آن چه آن قصهای بیهوده درشب وسخن های خنده آور وخرافا وغنائ وآوازخوانی ومانند آنها باشد۔

عن عبدالله یقول سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول الغناء ینبت النفاق فی القلب. (ابوداود، باب کُراهیة الغناء والزمر جلد ٢ ص ٣٢٦)

ترجمه: از عبدالله بن مسعود رضی الله عنه روایت است که گفت شنیدم از نبی اکرم صلی الله علیه وسلم که فرمودند غناو آوازخوانی دردل نفاق رامی رویاند۔

عن عمران بن حصين رضي الله عنه أن رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال فى هذه الامة خسف ومسخ وقذف فقال رجل من المسلمين يا رسول الله ومتى ذاكُ؟ قال إذا ظهرت القينات والمعازف وشربت الخمور. (ترمذى ابواب الفتن، باب بعد باب ماجاء فى اشراط الساعة جلد ٢ ص ٤٩٢)

ترجمہ: از عمران بن حصین رضی اللہ عنہ روایت است کہ نبی اکرم فرمودند درین امت فرور فتن بزمین، ومسخ وتبدیل چہرہ، وقذف وسنگباران می آید، پس مردی از مسلمانان گفت ای رسول خدا چہ وقت می باشد آن، فرمدند وقت کہ ظاہر وعلنی شود آوازخوانان زن، وآلات لہو وموسیقی، ونوشیدہ شود شرابہا۔ تجارت وکاروبار در کنیزہای آوازخوان ودر آلات لہو وغیرہ حرام است۔

عن أبي أمامة رضي الله عنه عن رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال لا تبيعوا القينات ولا تشروهن ولا تعلموهن ولا خير فى تجارة فيهن وثمنهن حرام فى مثل ذلكُ انزلت عليه هذه الاية (ومن الناس من يشترى لهو الحديث ليضل عن سبيل الله) الى آخر الاية (ترمذى، ابواب التفسير، باب ومن سورة لقمان جلد٢ ص ٦٢٤)

ترجمہ: از ابوامامہ رضی اللہ عنہ روایت است کہ نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم فرمودند نفروشید کنیزہای آوازخوان راونخرید آنہاراو تعلیم نکنید بآنہا آوازخوانی راو خیر نسیت در تجارت درآنہا وپیسہ آنہا حرام است در مثل آن نازل شدہ است بر نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم این آیت () الی آخر الایۃ

عن عائشة رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهَا قالت قال رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان أصحاب هذه الصور يوم القيامة يعذبون فيقال لهم احيو ما خلقتم وقال إن البيت الذي فيه الصور لا تدخله الملائكُة. (بخارى، باب التجارة فيما يكُره لبسه للرجال والنساء جلد١ ص ٢٨٣)

ترجمه: از عائشه رضی الله عنها روایت است که گفت نبی اکرم صلی الله علیه وسلم فرمودند یقین صاحبان این صور تها (یعنی آنانیکه عکسهای ذی روح رامیگیر دند یا مجسمها میسانزد) در روز قیامت عذاب کرده میشود، وگفته میشود برای ایشان زنده کید وروح بدمید آنچه راکه خلق کردید، وفرمودند خانه که دران صورت باشد دران ملک رحمت داخل نمی شود۔

درفتنه بزگ این زمانه کتاب بنام (فتنه موبائل وانترنیت، وعذاب تصویر وویدوها) را دیدم که آنرا عزیزم مولوی محمد رضا رحمانی حفظه الله تعالیٰ من کل مضرات الجسمانی والروحانی درارتباط به تفریحات تخریبی نوشته کردند، بعض حصهای آنرا مطالعه کردم موصوف نهایت زحمت کشیده تا مسئله مطلوب رادرست توضیح وتشریح نماید، ومسلمانان را ازاضرار آن آگاه سازد، الله عزوجل کوشش وی راقبول کرده وعمر طویل وبابرکت نصیب وی گرداند، ووی رادر خدمت دین واصلاح امت ازاعمال واقوال گمراه کن توفیق مزید عنایت فرماید۔ آمین. یارب العٰلمین.

ابو عثمان محمد شریف حقانی

خادم احادیث نبوی صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ علی صاحبها الف الف صلاة وسلام

تاریخ: ۲۸۔ ۲۔ ۱۴۴۰ هجری

# تقریظ

## فضيلة الشيخ خادم المجاهدين العلامة

## حضرت مولانا محمدوزير ،فديي ،مدظله العالي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

الحمد لله الذى خلق الموت والحيوة ليبلوكُم ايكُم احسن عملاً والصلوة والسلام على من ارسله بالهدى( وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ ) وعلى اله واصحابه نجوم الهدى وعلى من اقتداء واهتداء. أما بعد:

په دغو کا ئناتو کې دانسان سعادت اوفرض شناسي داحکام خداوندي په اتباع کې ده احکام خداوندي بعضې دعقيدې سره تعلق لري بعضې داعمالو سره تعلق لري، ددورحاضر په ایمان سوزه فضاء کې داحکام خداوندي پېژندل ډېر اهمیت لري، اوسني عصرکې چې مسلمانان داعتقادي اواخلاقي يرغل دګوابنونو سره مخ دي اود مسلمان اولس په نوي غوړيدلي نسل باندې په عمومې توګه دپراديو تهذيب تېل کيږي يو شمېر نوي ځونان په ايرادي اوغير ايرادي توګه دفحاشۍ په مردار ډنډ کې لاهو کيږي.

عالم اسلام ته په دغه وخت کې عالمي ارتداد اود اعتدال پسندۍ په عنوان کې زندیقیت اوالحاد ته لاره خلاصه ده.

بې شکه چې دور حاضر دشر اوفتنو دوردی چنانچې هره ورځ يوه

نوي فتنه مېنځته راځي هره فتنه په اولس کې ډېره خطرناکه هيبت ناکه وي رفتار يې دباران څخه تېزوي ظلمت يې دتورې شپې څخه ډېر وي ددې وجې دنبوي ارشاداتو په رڼا کې دقرب قيامت په فتنوکې هره فتنه داولې څخه لويه وي پدې وخت کې مسلمان ته دتباهۍ اوبربادۍ وېره وي،ددې وجې نه ځوک چې غواړي چې ددوزخ څخه خلاص شي په جنت کې داخل شي هغه به دمرګ ارزو کوي، په دنيا کې اسلام هغه واحد مذهب اومکمل ظابطه حيات ده چې دانسان ددنيوي اواخروي دفوز اوفلاح ضامن دی که هغه عقائد اونظريات دي ياعبادات اواخلاق دي يا معيشت اوتجارت دی يا معاشرت اسلام دانسانيت په هره شعبه کې داسې روښانه تعليمات ورکړي چې بل هيڅ يو مذهب ندي پېش کړي داسې نظريات کوم قوم چې په دغه تعليماتو باندې په صحيح معنوکې عمل کړی دی هغه په اخرت کې سربلند شوي دي په دنيا کې بې هم دترقۍ اوحکمرانۍ مخه کوم طاقت نه ده ډب کړی-

هوکې؛ داسلام داول دورنه داسلام دعقائدو اواخلاقو په خلاف سازشونه روان دي اوشوي دي. په هر دورکې علماء حق دهر ښکاره اوخفيه تحريک اوسازش درک کړی دی اودهغوی مقابله يې کړې ده اودباطل طوفان مخه يې نېولې ده اوحق علم يې سربلند کړی دی.

دويلو دې پاتې نه وي چې دانسان سره خپل هيڅ نشته خپل وجود دده نـدى عقـل پوهـه علـم فهـم دده خپـل نـدى، دآوريـدولو، لېدلو ،لوستلو طاقت دده خپـل نـدى داټـول دالله جَلَّجَلَالُهُ وركـړه ده، دده مسكين سره فقـط عـدم دى، اودا عـدم هـم د لـوى الله تعـالى دابرادې اومشيت تابع دى، دعـدم هـم مالـک نـدى پـه حقيقت کې دالله تعالىٰ احسان اوانعام دى چې دا قيمتي نعمتونه يې انسان تـه وركړي دي كه انسان په خپلو كړنو كې مختار هم دى په حقيقت کې دا وركړه دالله تعالىٰ ده دعقل تقضاء ده چې د محسن اومنعم شكر يه آداء كول ضروري دي .

چې هغـه ددغـه لـوى منعم اومحسـن اوآمـرو، احكاموتـه پـه عقيـده اوعمل كې غاړه ايښودل دنېكيو په ځاى راوړل اودګناه څخـه ځان ساتل تقوىٰ غوره كول دي، داپدې معنىٰ چې ترڅو انسـان تـه دغـه قيمتـي وركـړه بې عوضـه بې ګټې ضـائع نـه شـي اوپـه امانـت كې خيانت نوي شوى-

بنده عزتمند دى الله جَلَّجَلَالُهُ عزت وركړى دى:( وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ ) ارشادمبارک په دې باندې ګواه دى، داعزت په معنې اوصورت دواړوكې انسان ته حاصل دى ( لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ فِي أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ ) ترټولو مؤكده ګواهي ده په ښايست دصورت انسان باندې، خو

شرط دادی چې انسان به دغه معنوي اوصوري عزت اوشرف ساتي چې دا يوازې په ايمان اوعمل صالح سره شونې ده که انسان دخپلې عقيدې اوعمل اصلاح ونه کړي؛ نو بيا به يې دا خپل کرامت دلاسه ورکړی وي أَسۡفَلَ سَافِلِينَ ته به مجبور کړی شي د عظيم او اليم مهين عذاب سره به مخ شي.

انسانان ټول په فطري ايمان سمبال پيدا کيږي، خو چون انسان طبيعي طور باندې دهوا هوس خواهشاتو دتعلق له وجې يې خپل فطري ايمان هېر شوی دی. ځکه الله تعالیٰ په خپل کامل فضل سره انبياء ورته رالېږلي دي چې تلقين دا يمان اوعمل صالح ورته وکړي خپله فطري وعده درب سره ورته ياده کړي زمونږ دا عقيده ده چې نبوت ختم شوی، لېکن علماء دانبياؤ وارثان دي دا وراثت اومنهج دنبوت چې شريعت اواحکام الهي بيانول دي دعلماء کرامو زيمواري ده، ترڅو دقرآن اوحديث يوه خبره هم بې رسولو پاتې نشي، کله چې فتنه ښکاره شي اوعالمورباندې چپ پاتې شي ګونګی شيطان ترې جوړيږي، سد آفرين دامت اسلامي په هغه عالمانو چې دهر باطل په مقابل کې يې دقلم اوتورې مبارزه جاري ساتلې ده، په اوسنۍ زمانه کې دفحاشۍ چرچه ده، په مختلفو تزويرونو، تجهيزونو سره دمسلمان په عقيده اواخلاقو حملې دي، لکه: موبايل، تلويزون، انټرنېټ، وغيره هغه په فتنه ککړ ايجادات

دي چې دانسانیت فرد فرد یې په ابتلاء کې غورځولی دی، فحاشي، غریاني ، شیطاني، وسواسو ته د ودې ورکولو پرجوش خروش سره زمینه سازدي، مسلمه امت یې په مخنوي مکلف دی، دینې عالمانو په فردي او اجتماعي ډول باندې ددغې مرضونو تشخیص کړی، دحل اودحرمت ابعاد یې پکې مشخص او واضح کړي دي، فلهذا دهر مسلم لپاره دځان ساتنې زیمواري ده چې ددغو تباکونکو فتنو څخه ځان اوعیال بچ کړي-

دمسلمان بنده لپاره ضروري ده چې دخپل ژوند قیمت وپېژني اوددې قدر وکړي په عبثیاتو کې یې تېر نه کړي ځکه چې دنیا ځای دکروندې داخرت دی، دلته به دابدي ژوند لپاره توښه برابره وي دا قیمتي ژوند به بې ځایه نه ضائع کوي، ځکه دلته بنده فقط دځو ورځو مسافر یا مېلمه دی، باید داسې مسافري تېره کړي چې دهغه اخروي ژوند لپاره څه نا څه ګټه یوسي نه تاوان، پاتې کېدل خو هرومرو نشته .

كما قال ابوبكر الصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ : شعر:

خذ بلطفكُ يا الهي من له زاد قليل

مفلس بالصدق يأتي عند بابك يا جليل

اين موسى اين عيسى اين يحى اين نوح

انت انت يا صديق راجي تب الى المولى الجليل.

زمونږ ډېر قابل قدر محترم ورور فضیلت شیخ مولوي محمد رضاء رحماني صاحب ته لاس په دعاء یو چې اسلامي امت ته یې ددغې فتنې په اړه مربوط شرعي احکام راجمع کړي، اودیو ښایسته خوندور کتاب په شکل کې زرینه تحفه مسلمانانو ته وړاندې کړه، الله تعالیٰ دې په باقیات صالحات کې ورته وګرځوي، الله تعالیٰ دې دده داسعې په خپله درګاه کې ترې قبوله کړي، دمحترم مؤلف صاحب دنورو دیني خدمتونو ترڅنګ دا خدمت هم واقعي دستاینې وړ اودوخت سره مناسب اقدام دی

داچې د (موبایل فتنه) په نام دغه خوندور اثرمي سرترپایه مطالعه کړ، دمعتمدو اومستندو مراجعو څخه پکې لال اوجواهر راجمعه شوي دي، په ډېره اسانه عام فهمه لهجه کې په عام اوخاص ډول باندې استفاده ترې کېدلی شي، ددین خلاصه د الله تعالیٰ عظمت اوپه خلکو باندې شفقت دی، یا په بل عبارت سره ددین خلاصه دالله تعالیٰ عبادت دهغه دپیغمبر صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اطاعت او دخلکو خدمت کول دي، دمؤلف صاحب دا خدمت هم قابل دصد سپاس دی، الله تعالی دې ټولو لوستونکو ته پرې دعمل کولو توفیق ورکړي آمین، لا ارضي بواحدة حتی اضم الیه الف آمین.

از علم مراد جزء عمل نیست     در علم محققان جدل نیست

محمد وزیر عفی عنه القدیر

۷/۹/۱۴۴۰ هـ ق رمضان المبارک دوشنبه ۲۰۱۹/۵/۱۲ میلادي.
۱۳۹۸/۲/۱۲ هـ ش

# تقريظ

## شيخ القرآن والحديث
## علامه مولانا سُلطان محمد ثاقب مدظله العالي
### خادم الاحاديث بجامعه الفاروقيه اكوړه خټک

الحمد لله الذي جعل في السماء بروجاً، والصلاة والسلام علي عبده الذي جعله الله رحمة للعالمين ونذيرا للعالمين، وعلي آله واصحابه هم سالكين على ادابه وسننه.

څرنګه چې زما يو مخلص ورور او فاضل فضيلة الشيخ مولوي محمد رضاء حفظه الله تعالي يوه رساله چې د موبايل او انټرنيټ فتنه ليکلې ده او په دې کې يې د تصوير حرمت او قباحت ثابت کړی دی او ډيره په زړه پورې خبره خو داده چې دلائل يې ډير واضح او قناعت ببنونکي دي ، مګر هغه چاته چې عنادي او يا لا ادري وي.

او ددې سره سره يې د تصوير اقسام يعنې ډولونه او قسمونه د نوي طريقو بيان او وضاحت هم کړی دی، الله تعالی دې ورته ډير اجر ورکړي او په دنيا کې دې مقبوليت ورکړي، او په آخرت کې دې الله تعالٰی ورته د اجر سبب وګرځوي.

ما دغه رساله په ډیر دقت او پاملرنې سره ټوله سر تر پایه مطالعه کړه، بالکل قابل قبول رساله ده او د مسلمان لپاره خصوصا د علماؤ او مجاهدینو لپاره ډیره ضروري ده چې په خپل عمل کې یې راولي او عمل پرې وکړي ځکه چې تصویر ګناه کبیره ده او مسلمان او عالم او مجاهد یې د ثواب په طریقه استعمالوي او دا د ډیر افسوس خبره ده بنا په هر تقدیر الله تعالی دې دده دا سعیه او کوښښ قبول کړي.

بنده

**سلطان محمد « ثاقب»**

# تقریظ

## شیخ القران والحدیث بحرالعلوم علامة مولوي طالب جان ،ادیب، مدظله العالي خادم العلوم النبویة بجامعة عمریة ټل

حامدًا ومصلیًا ، وبعد:

دا یو څرګند حقیقت دی چې د اسلام مقدس دین یو ترقي پسند دین دی په کوم شي کې چې د انسان ترقي اوګڼه وي هغه نه حراموي.

بل طرفته موسیقۍ یا ددې اسباب (ډیجیټل ټیکنالوجي) هغه فن دی چې نن په سائنس کې پر مختللې دنیا ډېره توجه ورته کړېده او د انسان لپاره یې ډیر ګټور بولي بلکه انګریزانو په نباتاتو او ګلانو هم تجربې کړیدي چې همدا موسیقي ته ډیره وده ورکوي نو ځکه دوی همدې فن ته ډیر رشد ورکړیدي.

خو ددی باوجود په شریعت غراء محمدي کې د دوی کلکه منعه شویده او استعمال یې حرام ګرځول شویدي.

دا ځکه چې موسیقۍ او ددې وسائل یقینا د انسان لپاره ډیر جالب دي ځوانان خو پرېږده چې په بوډاګانو او ماشومانو کې هم حرکت او مستي پیدا کوي خو دا خبره هر څوک مني چې ددې ډیر اثر

دانسان په شهواني او عشقي قوت باندې دی د انسان شهوت ته قوت ورپه برخه کوي او همدا قوت په جوش او حرکت راولي چې په نتيجه کې انسان په زنا او په ناروا عشق او محبت کې واقع کوي.

په اسلام کې لکه څنګه چې زنا حرامه ده همدارنګه مقدمات د زنا هم حرام دي لهذا موجوده موسيقي يا ددې اسباب ټول مقدمات د زنا او بد اخلاقۍ دي.

محترم مولوي صاحب محمد رضا رحماني د (موبايل او انټرنيټ فتنه) په نوم باندې يوه په زړه پورې مختصره رساله ترتيب کړې ده چې موجوده مسئله ډېره په تفصيل سره پکې څېړل شويده الله تعالی دې ورته اجر عظيم ورکړي، او الله تعالی دې مونږ ټولو ته سبب د اصلاح و ګرځوي . امين يارب العالمين

**مولوي طالب جان اديب**

خادم الاحاديث النبوية بجامعة عمريه تل

# تقریظ

## شیخ الحدیث حضرت مولانا معلم جان صاحب دامت برکاته

### خادم الأحادیث النبویه بجامعه منهاج العلوم ناریاب

الحمد لله والصلاة علی أهلها . وبعد:

دا یو حقیقت ده چې په موجوده دور کې تصویر کشي یو وبائي شکل خپل کړی چې عام او خاص پکې مبتلاء دي، او دویم موبائل او انټرنیټ هم د یو ایمان تراشۍ فتنې په صورت کې ظهور کړی، نو زمونږ مجاهد ورور او لوی علمي شخصیت محمد رضا صاحب دامت برکاته پورتنۍ فتنې درک کړی،او د دوی په باب یې علمي څېړنه کړی او پدې هکله ئي پوره عرق ریزۍ نه کار اخیستې دنوموړي کتاب چې مسمٰی دی په (د موبائل او انټرنیټ فتنه) ما په سطحي طور سره مطالعه کړ ټولې حوالې مې د اصل سره موافق پیدا کړی د نوموړي دا اقدام په علمي ډګر کې د ستایلو دی او دفع د فتنو لپاره پروخت اقدام دی، الله جل شانه دده سعې قبوله وګرځوي او الله تعالی دی د مزید تالیفاتو توفیق ورپه برخه کړي.؛او د خواصو او عوامو لپاره دی الله جل شانه مشغل راه وګرځوي.

وما ذالک بعزیز

العبد الضعیف **محمد معلم جان** خادم الاحادیث النبویه

# تقريظ

## فضيلة الشيخ حاوي العلوم الظاهرية والباطنية العلامة
## مولوي محمد نعيم صديقي مدظله العالي

الحمد لأهله والصلاة على أهلها وبعد: دا يو څرګند او روښانه حقيقت دی چې کله يوه ناروغي په جامعه يرغل وکړي، او د جامعې ځينې وګړي ترخپل تاثير لاندې راولي.

نو د جامعې د هر طبيب او معالج دا دنده جوړيږي چې د يو قهرمان په حيث ميدان ته را ودانګي، او ددغې يرغلګرې ناروغۍ مخنوي وکړي، او جامعه ترينه په ميړانه سره وژغوري؛

څرنګه چې هر عالم په جامعه کې د يو حاذق طبيب حيثيت لري، نو زمونږ يو ښکلي عالم چې د دين په مختلفو ميدانونو کې کار کوي، (محترم الحاج مولوي محمد رضاء رحماني صاحب) هم د يو هوښيار معالج په توګه په جامعه خور شوی ناسور او مهلکه ناروغي درک کړي او د هغې په وړاندې يې خپله قلمي مبارزه پيل کړي، او د (موبايل او انټرنيټ فتنه ) په نوم يوه ډيره ښايسته او مفيده رساله يې پرې ليکلې ، ما عاجز بنده دا رساله له اول نه تر پايه پورې ولېده ، پدې رساله کې نوموړي مؤلف صاحب د جامعې ټولو وګړيو ته د ناروغۍ تشخيص کړي، د هغې اسباب او عوامل

يې ورته په ګوته کړي او ځای په ځای يې د هغې علاج او نسخې ښودلې دي.

او ښه خبره خو لا داده چې اجزء يې مبارک قرآني ايتونه ، مبارک نبوي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احاديث، د صحابه کرامو رضوان الله عليهم اجمعين زرين اقوال او د علماؤ، مشائخو رحمهم الله نه قول او حکايت دي، او د فقهې په معتمد فتاواو يې مؤيده کړې، او دا اوسني دور په مفتيانو او فتاوا وو يې لا تزيين وربښلې، نو زياته مفيده او هر کس لپاره نفع منده ده، حق تعالى جَلَّ جَلَالُهُ د ټولو لپاره د نجات ذريعه وګرځوي ، او رب ذو الجلال دې د محترم مؤلف لپاره يې صدقه جاريه او د اخرت توښه کړي،

امين يارب العلمين بحرمه سيدالانبياء والمرسلين صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

عاجز بنده ابو محمد صديقي عفي عنه الباري بن مرحوم محمد رحيم عفي عنه الکريم

نيټه : ۲۲ ربيع الاول ۱۴۴۱ هجري
۲۰۱۹/۱۱/۲۰ عيسوي

# تقریظ

### شیخ القرآن والحدیث
### حضرت مولانا علامه مفتي محمدسردار مدظله العالي
### استاذ الأحادیث بجامعه العربیه ټل

نحمده ونصلي علی رسوله الکریم أما بعد:

باعث تحریر اینکه ، کتاب، د موبایل او انټرنیټ فتنه، ما عاجز بنده ته د تقریظ لپاره پیش کړی شو ما عاجز په ډیر غور او فکر سره مطالعه کړلو ډیر مې خوښ شو ځکه چې د صریح حرامو څخه په منع کولو مشتمل وو داسې حرام چې په حاضر وخت کې یو عظیم جرم کبیره ګناه او فتنه ده چې عوام او خواص پکې مبتلاء دي الله تعالی دې مونږ ټولو ته ددې څخه آمان راکړي، رحم الله من قال امین.

ځینې زمونږ ملګري کتابونه ولیکي خو په مستحباتو او مکروهاتو باندې ، ددین اسلام او د جناب محمد رسول الله ﷺ د هر حکم او ضع قطع څخه قربان خو نن مدعیان اسلام د فرضو واجباتو او د حرامو پرواه نکوي نو نن د دغو اهتمام زیات ضروري دی، ځکه چې د دغو په اهتمام نه کولو سره د دین اسلام څخه محروم کیدل دي، د حضور ﷺ، واضح اعلان ده (لا یؤمن أحدکم حتی

يَكُونَ هَوَاهُ تَبَعًا لِمَا جِئْتُ بِهِ) بحواله مشکات وغیره کتب حدیث. ددې حدیث معنٰی او مقصد دادی چې مؤمن نه دی یو فرد له تاسو څخه تر څو چې دده خواهش زما د راوړي دین تابع نوي، نو څوک چې د دین اسلام د فرضو او حرامو اهتمام نکوي هغه ددې حدیث په رڼا کې مؤمن نه دی، ددې وجې څخه زه عاجز د مولوي محمد رضا رحماني په دې کتاب ډیر خوشحال شوم چې ده مبارک د موجوده وخت د یوې لوی فتنې بروقت روک تهام کړی دی داسې فتنه چې بذات خود کبیره ګناه ده د سخت عذاب موجبه (علت) ده، او د لویو متعددو کبیره ګناهونو سبب او داعیه هم ده چې هغه په دې کتاب کې ذکر دي، حقیقت داده چې مصنف مدظله العالیه ددې باب حق ادا کړی دی، صرف په دې یې اکتفاء نده کړې چې دا څیزونه حرام دي بلکه د دوی د حقائقو واضح کولو مشقت یې هم برداشت کړی دی چې دا د افتاء آداب دي چې د یو شي حقیقت او ماهیت او پیژنه بیا حکم کوه او ورسره یې د خپل قول اثبات لپاره د متعددو کتابونو او مفتیانو صاحبانو حواله جات او فتاوې هم ذکر کړي دي چې دا تحقیق صرف زما تحقیق نه دی بلکه د مذهب کتابونو او مفتیانو صاحبانو تحقیق او فرمان دی چې مونږ په هره مسئله کې دوی ته رجوع کوو، نو چې نور مسائل یې منو نو دغه به یې هم او منو دا الله تعالٰی حکم ده (فَاسْئَلُوٓا أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ)

**ترجمه:** عالمانو ته رجوع کوئ چې خپله نه پوهیږئ، په دې کتاب لیکلو سره مولانا رحماني د ټولو عالمانو اهمه فریضه ادا کړې ده، الله تعالی دې ده ته ډیر اجرونه ورکړي، هغه دا چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي (اذا راى منكم منكرا الخ چې تاسو یو بدعمل اوګورئ هغه په لاس سره منع کړئ که دغه طاقت مو نه ؤو بیا یې په زبان سره منع کړئ که دا وس مو نه وي بیا یې په زړه بد وګڼئ، نو د مولوي محمد رضارحماني په کتاب د عالمانو غاړې خلاصې شوې نن ډیر خلک دي چې ځانونه د امربالمروف او نهي عن المنکر ټیهکیداران ګڼې خو د بدو اعمالو تعاون کوي رد یې نه کوي په دې کې شک نشته چې نن کافرو په اسلام او مسلمانانو د اسلحې نه علاوه په مختلفو شیانو سره حمله کړې ده چې په هغه کې څه لګه ډیره دنیاوي فائده وي خو عالمان د دین د هغه په تباهۍ پوهیږي نو قوم ته یې بیانوي، د محمد رضا رحماني مولوي صاحب دغه کتاب ددې باب راه نما او مبلغ ده الله تعالی دې د مخلوق لپاره د هدایت ذریعه وګرځوي او مصنف لپاره او د ټول امت لپاره د آخرت توشه وګرځوي آمین.

**مفتي محمد سردار**

# تقریظ

### شیخ القرآن والحدیث

### حضرت علامه حاوي العلوم الظاهریه والباطنیه

### مولانا دوکتور ګل رحمان حقاني مهاجر مدني مدظله العالي

الحمد لله الذي جعل علمائنا هداة الهداية و دعاة الأمة الكافة والصلاة والسلام علي من قام بارشاد الأمة نهارًا وبيانًا وعلي أله و أصحابه الذين بذلوا جهودهم في تنوير الاناسي جمعيًا واشطاتًا.

وبعد :محترمو! ددې خوندور کتاب یو څو اهم مباحث مې تر نظره شول ماشاء الله لا قوة الا بالله ، مشت نمونه خروار نه څرګنده شوه چې کتاب د علمي ملغلرو سوچه او پاکیزه حقائقو یوه خزانه ده، په ډیره ښکلي زړه راوښکونکي خوږه سوچه عام فهمه او روانه پښتو ژبه کې نړۍ ته یو ګټور علمي سوغات دی ځکه په معاصر وخت کې چې اوسني امت د نبوي وړانګو څخه ډیر لرې دی، شیطان د خپلې واکمنۍ د غښتلی کولو لپاره ډول ډول د سیسې په کار اچولي دي، تر څو خپل پیروان ډیر کړي او ټوله د دوزخ و کندو ته وغورځوي.

نو مطبوعات یارسنۍ نه یواځې د ما في الضمیر د اظهار بلکه د خلکو ژبې او ذهنونه د خپل ما في الضمیر تابع ګرځول ، او د

اهدافو او مقاصدو د ترلاسه کولو لپاره تر ټولو ستره مهمه او کامیابه وسیله ګڼل کیږي، رسنۍ د چا په اشاره کار کوي ؟ دا خبره ډیره مهمه ده او باید چې مسلمانان پرې پوهه شي چې د دنیا په رسنیو باندې (۹۶٪) فیصده یواځې د (۶) کمپنیو یا شرکتونو ملکیت دی، هغه شپږ واړه کمپنۍ د یهودیانو (jews) دي.

امریکا چې په دې مادي نړۍ کې دا مهال په نظامي ډګر کې تر ټولو ستر ځواک دی نو بې له شکه چې رسنۍ یې هم په نړۍ کې تر ټولو ځواکمنې رسنۍ دي او سره له دې چې دلته د یهودو شمیر ډیر کم دی خو دوی ددې هیواد په هغو رسنیو قابض دي کومې رسنۍ چې ددې هیواد په سیاسي ، اقتصادي، او ټولنیزو چارو کې پالیسي او خط مشي ټاکي، په دنیا کې ترټولو لویه کمپني او لوی شرکت والټ ډزني (welt disney) ده ددې کمپنۍ تر ټولو زیات پروډکشن هاؤس په امریکا کې دي، له دې کمپنۍ سره (۷) لوي نیوز پیپرس (اخبارونه) درې میګزین او یو لوي کیبل رسیږي.

دوهمه لویه کمپني ټایم وارنر (time wrner) ده چې هغه هم د امریکا له ټولو څخه لویه پي ټي وي کیبل نیټ ورک او ایچ بي په ملکیت کې لري، په امریکا کې د میګزین او اخبار لویه اداره (time magazine) چې په امریکا کې تر ټولو زیات شائع کیدونکي

ده هغه هم د يهوديانو په لاس کې ده.

دريمه کمپني وائي کام (wai com) ده دا شرکت د خلکو د اذهانو د خرابولو لپاره کار کوي، او هر کور ته يې لاس رسی حاصل دی.

ځلورمه کمپني نيوز کار پوريشن (news corporation) ده چې د هغې ملکيت هم د يهودو په لاس کې ده، د يادونې وړ ده چې په امريکا کې د ورځې (۲) کروړه اخبارات خرڅيږي چې (۷۰%) فيصده برخه يې د يهودو ده، د يوې ليکنې له مخې چې د امريکا درې لوی لوی اخبارونه لکه نيويارک تايمز، (the newyark times) او وال سټريټ جرنل (wall street journal) او واشنګټن پوسټ (Washington post) او نيوزويک (news week)او ټايم ميګزين (time magazine) هم د يهودو په واک کې دي.

بايد دا ومنو چې د نړۍ په ګردو مشهورو رسنيو د يهودو قبضه راغلې ده، يهوديانو پرله پسې هڅې کړي دي او د ابلاغ ذرائع يې خپل کړي دي، دوی په خپل هدف کې کاميابي ترلاسه کړي ده، د دوي هدف په نړيواله کچه د رسنيو له لارې شر خپرول او د اسلام ضد تبليغات کول دي، دا يو مسلم حقيقت دی چې طاغوتي قوتونه د ابلاغ په ذرائعو او د الکټرانک ميډيا په ذريعه فحاشي، عرياني، او د غير اخلاقي موادو په خپرولو کې مصروف دي،

استعماري قوتونه په الهي احکامو طعن، تشنیع او په دیني عالمانو اعتراض کوي او له همدې لارې د بې دینۍ بازارونه ګرموي، په داسې ځلبلاند حالت کې ددې امت خاصه ډله (دیني عالمان)د ابلاغ د ذرائعو په صحیح استعمالولو بوخت دي، دیني عالمان په دې لاره کې هلې ځلې کوي او له قسم قسم کړاوونو سره مخ کیږي او خپل خوګ ژوند یې په ځان باندې نارامه ګرځولی دی، نو محترم ورور ښاغلي لیکوال علمي او روحاني شخصیت محمد رضا رحماني دامت برکاته العالیه د زیار او هاند ستاینه کوم ډیره خواري یې کړې دا کتاب (د موبایل او انټرنیټ فتنه او د تصویرونو او د ویډیو ګانو وبال) یې لیکلی او ډیر ښه مطالب یې پکې راټول کړي دي چې یو خوا د موبایل او انټرنیټ فتنه او بل خوا د تصویرونو ویډیو ګانو وبال یادونه پکې کړې ده، نه یواځې زمونږ علم کې پرې زیاتوالي راځي، بلکه نوموړي مطالب زمونږ لپاره ډیر د عبرت وړ او په دې وخت کې ورته اشد ضرورت لرو، نو دومره جامع او له اطناب او ایجاز څخه خالي کتاب ډیر کم تر سترګو کیږي، لکه سعدي صاحب رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمایي: ښه مشک خو هغه دي چې په خپله یې وګمې ولاړې شي او نه دا چې عطر پلورونکي یې په ستاینو ستړي شي ( مشک آنست که خود ببوید).

په پایځ کې د رب العالمین څخه غوښتنه کوم چې محترم او مکرم ورور مولوي محمد رضا صاحب ته په دې ما به الافتخار عظیم علمي شاهکار عظیم اجرونه او ثوابونه ورکړي او اهل علمو ته دې ددینه د استفادې توفیق ورپه برخه کړي.

الله تعالی دې د ورور محمد رضا صاحب لیکنې تاید او بهانه ولري، څو په ائنده کې نور ممتاز دیني خدمتونه ترسره کړي، نو له لوی څښتن څخه دا غوښتنه لرم چې د قیامت تر ورځې پورې په دې کتاب سره بشپړه مسلمه امت ته ګټه ورسوي.

صلی الله علیه وسلم وصحبه اجمعین ومن تبعهم بأحسان الي یوم الدین

**المهاجر المدني ابوالحبیب گل رحمان حقاني عفی عنه**

۱۴۴۰/۹/۳ ههجري ق

# تقریظ

### فضيلة الشيخ حاوي العلوم شيخ الادب

### مولانا فيض الرحمن حقاني دامت بركاته

### استاذ بدار العلوم حقانيه اکوړه خټک

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ○

نحمده ونصلي على رسوله الكريم ! أمّا بعد:

په اسلامي ټولنه کې د مسلمانانو د عقائدو او اعمالو کمزوري کولو لپاره کفار د بیلا بیلو لارو څخه کار اخلي چې په هغې د فحشا او د بې حیایۍ خپرولو سره دا کار په اسانۍ سره تر سره کېدای شي.

اودبې حیایۍ خپرولو د لارو څخه تصویرونه ،ویډیوګانې،او موسیقي هم دي،چې دې ټولو ته بیا د انټرنیټ او موبایل په کارولو سره ډیره په اسانۍ سره لاس رسۍ کیږي.

سره له دې چې د موبایل او انټرنیټ د افادیت څخه هیڅوک انکار نه کوي،خو ضررونه یې هم له چا پټ نه دي،نو ددې لپاره چې مونږ د دواړوصحیح استعمال اوپیژنو او د بد استعمال څخه یې ځان اوساتو نو ضروري ده چې د علماؤ لارښوونې تعقیب کړو تر څو د شریعت د لارښوونو سره سم په هغې عمل وکړو.

نو ما د مولوي صاحب محترم رساله ځای په ځای اوکتله،دوی په دې رساله کې ډېر په ښه انداز سره د تصویر او ویډیو او موسیقۍ تحقیق کړی دی،او بیا یې د هر یو شرعي حکم د علماؤ د اقوالو په رڼا کې بیان کړی دی،چې ددې سره د موبایل او انټرنیټ سم او ناسم استعمال په صحیح توګه په ګوته کیږي، الله تعالی دې د مولوي صاحب دا کوشش قبول کړي،او دنوموړي لپاره دې صدقه جاریه وګرځوي. آمین

**مولانا فیض الرحمن حقاني**

تاریخ ۸ شوال ۱۴۴۰ هجري

# تقريظ

## فضيلة الشيخ صاحب الورع والتقوى علامه

## مولانا الحاج طالب جان ،ذكي ،مدظله العالي

الحمد لله الذي شرح صدورنا بوسيلة نبي الرشاد وزين اعمالنا بامتثال الأوامر والنواهي والاسعار، ونورزماننا بتخليق الاولياء الكُاملين والراسخين الواصلين المتوسلين.

والصلاة والسلام على من نورسراج الهدايت بتبليغ الرساله الى العباد وعلى آله الطيبين واصحابه الذين نالوا درجات النصر والجهاد خصوصا على الخلفاء الراشدين المبشرين بدخول الجنه ونعم المهاد.

اللهم احشرنا في زمرتهم في يوم الميعاد، واحفظنا من شر الشيطان ومكُائده عند وداعة الارواح من الاجساد ، آمين برحمتكُ على عبادكُ يا ارحم الراحمين بجاه سيدا لانبياء والمرسلين.

وبعد څرنګه چې زمونږ ډیر قدر من وروړ حضرت مولانا محمد رضا رحماني صاحب چې د وخت د اشد ضرورت پر بناء يې د انټرنيټ او موبايل فتنه تر عنوان لاندې يو نایاب او زيات په زړه پورې کتاب تاليف او ترتيب کړی دی، مونږ دغه کتاب په ښه غور سره تريوه حده تر نظر تير کړ، دغه کتاب چې په ښو او مؤثقو ادله ؤ مزين دی چې دغه دلائل يې له معتبرو ذرائعو څخه راټول کړي دي،

چې د سیمې او منطقې لپاره ښه راهنمائي کړېده، الله تعالی دې د مؤلف دغه هاند او هڅې په خپل دربار کې قبولې کړي او الله پاک دې مزید توفیق ورکړي چې ددغه قلمي خدمت لړۍ جاري وساتي

آمین.

ستاسو ورور مولوي طالب جان «ذکي»

# تقريظ

## شيخ القرآن والحديث حضرت علامه مولانا محمد مسلمين
### استاذ الأحاديث بجامعة خالد ابن وليد درسمند مدظله العالي

الحمد لله الخلاق العليم الا يعلم من خلق وهو اللطيف الخبير. وأشهد أن محمدًا عبده ورسوله حذره من مضاهاة خلق الله بالتصوير غاية التحذير. وصلي الله عليه وعلى اله واصحابه ومن تبعهم بإحسان إلى يوم الدين.

اما بعد: يقينا مولوي صاحب محمد رضا رحماني مدظله العالي د وخت مناسب په داسې يوه مسئله باندې دغه رساله ليکلې ده چې عام او حتى خواص خلق د تصوير ويستلو په مسئله کې بوخت دي، او د تصوير حرمت د خلکو د اذهانو څخه ويستلې شوې دی، حتى چې عامو مجالسو کې بلکې په مساجدو کې تصويرونه ويستل کيږي او خلق يې منکر نه ګڼي، او زما هم دا ارمان ؤو چې په دغه مسئله تحقيق وشي او حرمت يې مدلل شي، خو مولوي صاحب محمد رضا رحماني مدظله العالي ته دې الله تعالی جزائ خير په دنيا او اخرت کې ورکړي د تصوير دا مسئله يې په ډيره سعي او کوشش سره زياته تفصيلي او مدلله سره د حوالو ليکلي ده، الله جَلَّ جَلَالُهُ دې دا خدمت ترينه قبول او منظور کړي، او دا رساله دې الله جَلَّ جَلَالُهُ رائجه او نافعه وګرځوي، او مؤلف صاحب ته دې الله جَلَّ جَلَالُهُ مزيد ترقي ددين د خدمت لپاره ورپه نصيب کړي.

**بنده مسلمين**

خادم العلوم الاسلاميه، ، ۱۴۴۰/۸/۷ هجري

# تقريظ

## شيخ القرآن والحديث بحرالعلوم حضرت مولانا حميدالله جان حقاني مدظله العالي استاذ الحديث بجامعه رحمانيه ټل تورپل

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

الحمد لله الذي هدانا للاسلام وبين الحلال والحرام ، ويصورنا كيف يشاء في الارحام، وجعل الشريعة صراطا مستقيما للخواص والعوام، ومن علينا بفضله بعلوم الشريعة والاحكام، والصلاة والسلام علي حبيبه سيد الانام. **أما بعد:** فقد سرحت النظر في هذا الكتاب المسمي (بفتنة الموبايل والانترنيت) فوجدته نافعا ومفيدا لجميع من يريد النجاة والاجتناب من هذه الفتنة العظيمة الدجالية، لانه موافق ومنقول من الكتب المعتبرة في هذا الموضوع، ايها الاخوان الكرام لا سيما اهل الخير من العلماء والطلباء والمجاهدين والمدرسين والائمه في المساجد وسائر المسلمين، أن التصاوير بجميع انواعها محرمه مطلقا ولا شك في تحريمها، وهو ذنب كبير كما صرح به الفقهاء الكرام ، سواء كان التصوير بالآت قديمه أو بالات جديده، فقد وردت الأحاديث الصحيحة الدالة بحرمتها بلا تخصيص واستثناء، وجاء الوعيد الشديد في منع التصاوير، كما في البخاري قال عليه السلام ان اشدالناس عذابا يوم القيامه المصورون.

و أيضا في رواية اخر . قال اشد الناس عذابا عندالله يوم القيامه الذين يضاهون بخلق الله تعالي قالت فجعلناه وساده أو وسادتين البخاري.

و أيضا في روايه في اخر الحديث ان اصحاب هذه الصور يعذبون يوم القيامه ويقال لهم احيوا ما خلقتم وقال صلي الله عليه وسلم ان البيت الذي فيه الصور لا

تدخله الملائكُه () وقال العلامه العيني وفي التوضيح قال اصحابنا وغيرهم تصوير صورة الحيوان حرام اشد التحريم وهو من الكُبائر وسواء يمتهن أو لغيره فحرام بكُل حال، لأن فيه مظاهرة الخلق الله، وبمعناه قال جماعه العلماء وامام مالكُ والثوري، وابوحنيفه وغيرهم (كُتاب اللباس باب عذاب المصورين يوم القيامه) فعلينا ان نتبع وبعمل بالقران والأحاديث النبوي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و أقوال الفقهاء لا يجوز لنا ولبعض اخواننا اتباع النفس والهواء والشهوات، وامور الطبيعة في استعمال التصاوير، المستدلين بدلائل العقلية القاصرة الخارجة من البطن، والاذهان الكُاسدة بمقابلة النصوص المطلقة و أقوال الفقهاء اللازم علينا في خدمه أمورالدين اتباع السلف والخلف، وتركُ الهواء والشهوات وحظوظ النفسيه، اللهم وفقنا لما تحب وترضاه ، ونجنا وجميع المسلمين بفضلكُ من هذه الفتنه العظيمه السارية في جميع مجالس الخير والشر واسئل الله تعالى ان يجعل هذا الكُتاب كُا الشمس بين النجوم ونافعا للمسلمين بفضله وكُرمه، واجعله للمؤلف حضرت مولانا و اولانا الحاج محمد رضاء صاحب ولاولاده و اقاربه وسيله وزخيره الى رضاء الله تعالى والى قربه، ومقبولا عنده، ومن الباقيات الصالحات، بحرمه نبيه صلى الله تعالى والى قربه، ومقبولا عنده، ومن الباقيات الصالحات، بحرمه نبيه صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، اللهم باركُ في علم المؤلف واستعداده وذهنه وادخله في زمرة الصالحين المقربين، والمؤلفين المتقدمين بحرمت سيدالمرسلين صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

راقم الحروف

العبدالضعيف بنده حميدالله حقاني النقشبندي عفى عنه

المدرس والمهتمم للدارالعلوم رحمانيه تل تورپل کُیمپ

# تقریظ

### فضیلة الشیخ حضرت مولانا حکیم

### مولوي عبدالرشید قادري ونقشبندي مدظله العالیه

الحمدلله وحده والصلاة والسّلام علی من لا نبي بعد وعلی اله واصحابه ومن تبعهم بإحسان الی یوم الدین. و بعد:

دا یو څرګند او منلی شوی حقیقت دی چې کله نفسي او شیطاني خواهشات د انسان په عقل او زړه باندې غالب شي، او د انسان عقل محکوم او زړه یې مغلوب شي نو دا انسان معاشرې او خپل ځان او فامیل ته د زیاتو دنیاوي او اخروي نقصاناتو باعث جوړې شي، په همدې خاطر د اسلام مبارک او مقدس دیني تعلیماتو په دې خبره ډیر ټینګار کوي چې انسان له منکراتو څخه ځان فامیل او معاشره بچ وساتي، بلکې آن تردې چې دواعي د منکراتو څخه هم ځان ساتل ضروري بولي، مثلا د نظر حفاظت کول له محرماتو څخه یا له غیر محرمې سره خبرې کول ځکه چې داسې کول داعي الی المنکر کیږي چې هغه زنا کول دي، اعاذنا الله منه، په نن عصر کې د جدید ټیکنالوژي پرمختګ په میدان کې موبایل هم یو جدید او ډیر استعمال پرمختګ دی، څرنګه چې د موبایل سره د انټرنیټ استعمال هم د خلکو معمول ګرځیدلی دی، او دا عمل د ډیرو بدو

او منکراتو سبب جوړ شوی دی چې صاحبان د عقل پرې پوهيږي، زيات تفصيل ته يې ضرورت نشته، عمده نقصانات يې په لاندې ډول دي، (۱) اهل علم يې له علم څخه محروم کړه، عصري علم والا او هم ديني علم والا (۲) حسنه اخلاق ، شرم حياء او ديني غيرت يې صفرته راکوز کړه، (۳) د وخت ضائع کيدل له عبادت، ذکر ، مراقبې ، او نورو صالحو اعمالو څخه يې خلک پاتې کړه، الغرض په دې موضوع زمونږ ډير تکړه او د جامعې د اصلاح فکر مند دوست الحاج مولوي محمد رضاء رحماني صاحب زبردسته او جامع رساله ليکلي چې مسمى ده (د موبايل او انټرنيټ فتنه) فجزاه الله احسن الجزاء في الدنيا والاخره ، دا رساله ما هم مطالعه کړه يقينا چې اسم يې له مسمى سره مطابق دی، جامع مدلل او عام فهم رساله ده، په آخر کې زما التماس دعامو مسلمانانو څخه عموما او د طلبه کرامو څخه خصوصا او همدارنګه د علماء کرامو څخه اخص الخصوص دادی چې يو ځل ضرور دا رساله مطالعه کړي د عمل په نيت، پوره باور لرم چې د معاشرې اصلاح به وشي، واجرکم على الله.

اخوکم في الله حکيم مولوي عبدالرشيد قادري ونقشبندي

۲۰۱۹/۱۰/۲۵

# المراجع والمصادر


| ١ | قرآن كريم | ٢٣ | مسند البزار |
|---|---|---|---|
| ٢ | تفسير روح المعاني | ٢۴ | الديلمي |
| ٣ | تفسيرابن كثير | ٢۵ | فتح الباري على البخاري |
| ۴ | تفسير بغوي | ٢۶ | شرح نووي على البخاري |
| ۵ | تفسير معارف القران | ٢٧ | عمده القاري على البخاري |
| ۶ | تفسير ابن جرير | ٢٨ | عون المعبود على ابي داود |
| ٧ | مفردات الفاظ القران | ٢٩ | شرح الحموي على الاشباه |
| ٨ | احكام القران | ٣٠ | امداد الفتاوى |
| ٩ | معالم التنزيل | ٣١ | كنزالعمال |
| ١٠ | تفسير قرطبي | ٣٢ | الاشباه والنظائر |
| ١١ | بخاري شريف | ٣٣ | ردالمحتار |
| ١٢ | مسلم شريف | ٣۴ | شرح اربعين النووي |
| ١٣ | ابوداؤد شريف | ٣۵ | فتاوى هنديه |
| ١۴ | نسائي شريف | ٣۶ | فتاوى عثمانيه |
| ١۵ | مشكاة شريف | ٣٧ | كفايت المفتي |
| ١۶ | مرقاة المفاتيح | ٣٨ | احسن الفتاوٰى |
| ١٧ | معاني الاثار | ٣٩ | فتاوٰى يوسفيه |
| ١٨ | نيل الاوطار | ۴٠ | شرح المجله |
| ١٩ | بيهقي | ۴١ | اتحاف السعادة |
| ٢٠ | المنثور | ۴٢ | المنجد |
| ٢١ | الشفاء | ۴٣ | الموسوعة الفقية |
| ٢٢ | ډيجيټل تصوير | ۴۴ | تصوير كي شرعي احكام |